# زما دردونه

دې دنیا ذرې ذرې کړم
هره خوا ذرې ذرې کړم
د غم ډکه زندګی ده
دې هوا ذرې ذرې کړم
راځي وخت په بل بل رنګ کښې
هر سبا ذرې ذرې کړم
لا د یار مینه سیوا ده
دلربا ذرې ذرې کړم
دنیا چرې نهٔ خپلیږي
دې سودا ذرې ذرې کړم
خوشحالي چرته کښې نشته
غمه تا ذرې ذرې کړم

ایم طارق سحرؔ

## ﴿د خپل کتاب حق زما دے﴾

د کتاب نوم : زما دردونه مصنف : ایم طارق سحر

چاپ کونکی : دی سن پرنټرز محله جنګی پیښور

د چاپ کال: ______ مئی ۲۰۱۴

کتابت : سیا ح الدین

شمیر: ________________ پنځه سوه ټوکه

بیعه: __________________ ۳۰۰روپی

خوروونکے : ___ طارق سحر شاه ډهنډ لوند خوړ(مردان)

درکونه:

ګرځنده : 03159765891

E-mail: muhammadtariqsahar@gmail.com

پښتو اکیډیمی بک شاپ پیښور پوهنتون

لوند خوړ بازار، کاټلنګ بازار، سرکاری لویه ښودنځی کاټلنګ

مردان

ګورنمنټ سیکنډری سکول کاټلنګ مردان



## ﴿زما دردونه﴾

"دا څه وو او څه او شو عجیبه زماني تیري شوي
بهار وو پسرلی وو، د ګلونو مودي تیري شوي
مالیار وو مه د ګلو، چار چاپیره خوشبویاني---
باغ تالا والا شۀ، په ګلزار مي پهري تیري شوي"
شعر نه دے دامي درد دے دا دردونه ټول زما دي
کتاب نه دے دا خیالونه، دامي سوچ د انتها دے
د یار درد چي مي په زړۀ شي نو زۀ و لیکمه شعر---
که غزل وی که دا نور څۀ، دا فکرونه د لیلا دی

طارق سحر

"حاسدا! حسد مه کړه، زۀ شاعر یمه کنه
څۀ او ګوره زما! دانشور یمه کنه
نیسان نه چرته راشي دا یو څاڅکي له آسمانه
ته و ګوره سیپي کښي، ښۀ ګوهر یمه کنه"

ډیر ښکلي او د میني او حسن نه ډک دے ما ورته خپل کتابونه هم ډالي کړي دی۔ شاعر صیب هر وختی میڼ ښکاری د غزلواو نظمونه نه پته لګی چي سَحر صیب د میني او حسن لیواله دے۔

زۀ پــــه لارو کښـــي تـــاګــورم او تـــه نـــه ئـــي
د را تـــلـــولا ري دي څــــارم اوتــــه نـــــه ئـــي
چـاتـۀ ووائـم حـالـونـه چي زمـا زړګی کښی څه دی
پــټ پــټ تــاپـســي ګـرزیـږم ا و تــهٔنــهٔ ئـي
زمـــــازړۀ کـــوی نـــري نـــري د ردو نـــــه
ستــاهــجــران کښـپـی زۀ خـوریـږم او تــۀ نــۀ ئـي

طـارق سَحر صیب د شعر په هر صنف پوهیږي غزل دے که نظم ،رباعـی، قـطـعـه ، مستـزاد، هـر اړخ کښـي تخیل پـه ښکلی شان ځایوی او زړۀ راپاروی۔

دی نـه بـغیر سَحـر پـه ژونـد انسان اسلام، خیال او انسانی مخ ډیر پوهه دے۔ سحر صیب کښي مینه، ادب،اخلاص او ددۀ شاعری رومـان اړخ ته درنه ښکاری داسي ښکاری چي طارق صیب فطرتی رومـانـی شـاعـر دے۔ رومـانیت ئي هر کتاب اوهروخت شاعری کښي ځلیږی۔



یـوه جیـنیـی ،د ګـنـد ډکـه پیښوره، فریادونه، اے زړګیه، په لاره کښـي، زمـا د لار مـحـبـوبـا، جـانانه بدی لګم ، دردونه، بد کورونه، بـوډئ، څـه اوشـو، پیـغـلـه، او شـاهـکارشاعری ده د طارق سَحر صیب آزاد نظم ډیر ز بردست دے۔

طـارق صیـب مضمون خیال او تفکر ، قافیه او ردیف کښي او په ښه ټکو کښي رانغاړی او شعرتری جوړ کړی

زړګیه!
څه دے وکړل
دا ته په چا میڼن شوی
دا خو د لاري لولکۍ غوندي وه
دا خو د لاري ښاپیرۍ غوندي وه
دا خو د لاري غانړکۍ غوندي وه
دا خو د لاري مسافره غوندي---
ګوري په کومه تلی ---
ډیري مودي اوشولے
زړګي مي ژاړي پسي

لـنـډه دا چـي کـه څوک منی او که نۀ منی که خوښه ئي او که نه خو طارق صیب د پښتو ادب ښۀ شاعر دے۔ د تصنع او بناوټ نه

په کروهونو لري. د پښتو شعر او ادب په سحؔر صیب فخر او ویاړ کوی.

د سحؔر په هر کتاب ډاکټر راج ولی شاه صیب، او ډاکټر پرویز مهجور صیب لیک کړي داد سحر صیب یو ارمان دے چې 'زما دردونه' باندې زما لیک یو تاریخ پاتې شي.

شعر:

خبرې د روغ زړۀ کوې اے شیخه! هیڅ خبر نۀ ئې
روغ به لیونې شې که مسکې دې جانان اولیدو

د سحؔر صیب د شاعرۍ نۀ د مقصدیت، حقیقت، رومانیت، فلسفې، عشق و محبت، فنا او بقا رنګونه وخت په وخت راښهیږی
.

په درناوی
ډاکټرسلمیٰ شاهین
ریسرچ آفیسر(سابقه) ډائریکټر پښتو اکیډمی
پیښور پوهنتون پیښور
"مردان بغداده پختون خواه پاکستان"



## ﴿خپلې خبرې﴾

زړۀ دے راله تور کړلو اشنا, د تولو ښکلو نۀ
حوره د جنت کښې وی هم بیا د تولو ښکلو نۀ

هسې د رسمی لیکولو او تعریفونو څه معنی نه وی څه چې حقیقت وی هغه نه پټیږی.

زۀ د شاعری دعویٰ نۀ کوم چې چې زۀ یم ، خو شاعرۍ او ادب سره مینه لرم نۀ د غټو شاعرانو ادیبانو پسې ګرځم . چې زما د شاعری تعریف اوکړی او نۀ په ټی وی او میډیا باندې ځان ښائیم، څوک به چا له څه ورکړی څوک به چاله څه وکړی.څه چې وی هغه به وی. دا شاعری ستاسو مخکښې ده ښکاری چې د شاعری تاریخ کښې محفوظ یم، داسې خو څوک دوست وی څوک دښمن وی څوک به دې منی او څوک نه منی.

شعر:

چا راسره مینه ، نه یاری، او نۀ وفا کړله
ځکه مې ګیله ده ،دلربا د تولو ښکلونۀ

دا زما دردونه دی د پښتو شاعری او راتلونکی اولس ته داحساسونو ډالۍ او پیرزونې دی. زۀ دا ډاکټر پرویز ختک مهجور صیب ، ډاکټر راج ولی صیب او سلمیٰ شاهین مننه کوم

چې زما شاعرۍ ئې د پښتو ادب پاره جګه کړه مخکښې تبصره وړاندې کړه د پېښور پوهنتون د مطالعه پاکستان ډيپارټمنټ يوې طالب علمې جينئ رضوانه بيګم(ډېره لوندخوړ مردان) د ايم۔ اے مطالعه پاکستان ډګرۍ اخستلو کښې پاکستانی شاعرانو کښې زما په ژوند هم مقاله وليکله او د ايم ۔اے ډګرۍ ئې واخستله د رضوانه بيګم هم مننه کووم چې په ما ئې څه کړاؤ کړے دے۔ رضوانه بيګم ډېره با اخلاقه ،پاک دامنه، مينه ناکه او با ذوقه تعليم يافته جينۍ ده۔د ادب ځنې ټيکداران بل نه منی خو دوی ته عرض دا دے چې ګوته خله کښې ورکړی او اوګوری چې داڅه دی، داسې نظير اکبرآبادی هم چا نۀ منلو خو چا هم پټ او خړ نه کړو، د حافظ الپوری بابا هم دا ګيله ده معافی غواړم۔

په مينه او درناوی

ايم طارق سحر

شاه ډهنډ۔ لوندخوړ مردان پختون خواه



## ﴿د سحر صيب حقله﴾

سحر صيب اوس د شاعرانو استاذ دے، په شعر او ادب ډېره پوهه لری پښتو ادب کښې طارق سحر صيب د پيژند ګلو پامته داره نه دے يو زوړ شاعر دے او وۀ اتۀ کتابونه ئې ليکلی دی۔ د پښتو ادب په شاعرانو کښې شمارشوې دے۔

'د قلم خاوندان' نوې کتاب چې هميش خليل صيب ليکلې دے د سحر صيب ذکر کړې دے وړاندې ورځو کښې پرې د پېښور يوې جينۍ مطالعه پاکستان ايم ۔اے کولو کښې تهيسس ليکلی دی۔ دے نه علاوه هر څوک ئې ښه پيژنی ، د شاعرانو صف کښې ښۀ لوې او لوړ مقام لری ۔ د ژوند او انسان په هر اړخ کی ډوب نظر دے رومان او مينه، درد ئې د شاعرۍ مرکزی خيالونه دی نازک خياله دے زړ خوږيږی زما خو ډېر پخوانی ملګرې دے په هر کتاب کی ئې زما ليک موجود دے ښۀ د نزدې نه ئې پيژنم۔

هسې د رسمی خبرونه، تعريفونو نه څه نه جوړيږی په بناوټ خو يو کتاب دوه ليکلی شی اتۀ کتابونه هم څوک ليکلی شی۔قدرتی شاعر دے نرم دله دے مينه ئې زړۀ کښې بے کچه ده خو چا هم ورله مينه نه ده ورکړې بس دا کتاب او تاسو،

"زما دردونه" ئي ښهٔ کتاب دے

ډيره مننه په درناوی

ډاکټر پرويز مهجّور خويشکی پښتو اکيډمی پيښور

پوهنتون پاکستان



## اے الله

بده چي مي ژبه وي، داسي توان تهٔ را نهٔ کړي
بد چي مي خيالونه دی ربه داسي ما نهٔ کړي

سمه راله مينه راء، سم راله جانان را
بي ايمانه نه دي يم هسئ مي فنا نهٔ کړي

د سپورو او د ستغو نه اے ربه زهٔ پناه غواړم
بده چي مي ژبه شي داسی ما خطا نهٔ کړي

ډير دی ګناهونه مي، بدو نه مي وساتي
بچ په خپل قدرت کا ما، چرې ما رضا نهٔ کړي

آزار چي رانهٔ څوک نشی، دا لويه ګناه زما
وساتي بلا نه ما، ما تباه تباه نهٔ کړي

ژبه کښي خواږه راله راچوي شَکرُو نه
بده نشي ژبه مي ربَه ما تنها نهٔ کړي

غلي غلي ښهٔ يم، چي ګناه نشي
بيا سُحر د څه شاعر شعر چي دعا نهٔ کړي

## ﴿اے ربّه!﴾

تعریفونه ربّه ! ستا دی
ټول خیرونه ربّه! ستا دی
ټول دردونه ربّه! ستا دی

د نور چا پکښې څه نشته
د بادشاه پکښې څه نشته
د ګدا پکښې څه نشته
ټول زورنه ربّه! ستادی
تعریفونه ربّه! ستادی

څوک چې وائی ډیر نادان دے
عجیبه غوندې انسان دے
دا فانی فانی مکان دے
آسمانونه ربّه ستادی
تعریفونه ربّه ستادی



که ډیر لوئی یمه څه نه یم
که خوش خوی یمه څه نه یم
که بد خوئی یمه څه نه یم
حکمونه ربه ستا دی

دا زما کمال څه نه دے
دا زما جمال څه نه دے
دا شعرونه ربّه ستا دی
تعریفونه ربّه ستادی

ښه چې ته اِله او لوئی ته رب ئي
ښه چې شاهِ رب، صاحب ادب ئي
ښه چې ته اعلیٰ نشان اعلیٰ منصب ئي
د سحر وختونه ستا دی ماښامونه ربّه ستادی
تعریفونه ربّه ستادی، تعریفونه ربّه ستادی

## غزل

دا دنیا به داسي وی او زۀ به نهٔ یم
دا فضا به داسي وی او زۀ به نهٔ یم

دا وختونه به هم دا رنګي تیریږی
دا دنیا به داسي وی او زۀ به نهٔ یم

نورنور خلق به په دے دنیا کښې ګرځی
دا بیګاه به داسي وی او زۀ به نهٔ یم

لوئي کم عقل به په دې دنیا لوئي کا
دا سدا به داسي وی او زۀ به نهٔ یم

نور نور خلق به یاری او دلبری کا
دلربا به داسي وی او زۀ به نهٔ یم

بازارونه به مستی کوی موجونه
شورغوغا به داسي وی او زۀ به نهٔ یم



د دنیا پسي به خلق لیونی وی
دا ادا به داسي وی او زۀ به نهٔ یم

خو برویان به ډیر ارمان راپسی وکه
دا وفا به داسي وی او زۀ به نهٔ یم

دا سحر به چرته تورو مقبرو کښې
نوم زما به داسي وی او زۀ به نهٔ یم

## ﴿څه به نهٔ وائيم له خلقو﴾

کتابونه پرې ليکی شم

تفصيلونه پرې ليکی شم

ښهٔ ليکونه پرې ليکی شم

دا چې زهٔ وائيم له خلقو

څه به نهٔ وايم له خلقو

څوک دخدائے د پاره نشته

تسلی د پاره نشته ---

د ياری د پاره نشته

دا له زړهٔ وايمٔ له خلقو

څهٔ به نهٔ وايم له خلقو



هر انسان دنيا پرست دے

هر انسان هوا پرست دے

هر انسان نما پرست دے

دا تراخهٔ وائيم له خلقو

څه به نهٔ وايم له خلقو

ما هيڅوک او نه موندلو

ما ډير ځان او کړلو

هسې زړهٔ مې او سيزلو

ډير تاودهٔ وائيم له خلقو

څه به نهٔ وائيم له خلقو

مينه لاړه تر آسمانه
دوستي لاړه د جانانه
نه پاګل يم نادانه
دا خواږه وائيم له خلقو
څه به نهٔ وايم له خلقو

لوئي خدايا ستا جامه ده
تا اغوستي قديمه ده
د انسان دا ترانه ده
دا زهٔ څه وائيم له خلقو
څه به نهٔ وايم له خلقو



حسد بغض به له تا کا
ښهٔ او بد به دي په شا کا
تا به سپک تا به رسوا کا
دا ډېر ښهٔ وائيم له خلقو
څه به نهٔ وايم له خلقو

ما مالداره اوليدلو
ما دين داره اوليدلو
سحّر ياره! دنيا داره وليدلو
نور به نهٔ وائيم له خلقو
څه به نهٔ وايم له خلقو

## ﴿غزل﴾

اے محبوبا! زمانه نهٔ هیرېږي
ښکلی اشنا! زما نه نهٔ هیرېږي

ښائسته وجود دا ښکلي مخ دے کلي
تهٔ بي وفا، زما نه نهٔ هیرېږي

ښکاری ښکلا دي جوړ جادو کړي وو
یوه لمحا، زما نه نهٔ هیرېږي

په ډېره مینه جدائي کښي دے غزل لیکم
ته لا پروا زما نه نهٔ هیرېږي

زما په تن زما په روح کښي اوسي
ته ئي زما، زمانه نهٔ هیرېږي

ما ته که پته وے چي ما به سیزي
زما اشنا! زمانه نهٔ هیرېږي

په تنهائي کښي دے یادونه راځي
یمه تنها، ځمانه نهٔ هیرېږي



زما د زړهٔ نه دي غمونه نهٔ ځي
ښکلی لیلا! ځمانه نهٔ هیرېږي

تازهٔ بے هوشه بے حواسه کړمه
اے هوش ربا! زمانه نهٔ هیرېږي

زهٔ ستانه مینه، ستا وصال غواړمه
زما شها، زمانه نهٔ هیرېږی

سحَر به وائی د فراق غزلي
تهٔ دبل چا، زمانه نهٔ هیرېږی

## ﴿محبوبان﴾

ځــه خـوبـریـان بـه وی ددي زمـانـي
ځــه مـحبـوبـان بـه وي ددي زمـانـي

د چـاپـه خپـل زړګـي کښي ځـاي نهٔ کوي
ځــه دلـدا ران بـه وی ددي زمـانـي

ظـاهـره ښـکـلـي پـه بـاطن خیچن وی
ځــه خـوبـرویـان بـه وی ددي زمـانـي

تـا بـه میٔـن کـا ، بیـا بـه تښتي لـه تـا
ځــه دلبـران بـه وی ددي زمـانـي

اول بـه زړه واخـلـي بیـا سیـزی بـه ئـي
ځـه رنګ سـاقیـان بـه وي ددي زمـانـي



هسـي خـنـدا کـا ، نـور د هیـڅ هـم نـه وی
ځــه اشـنـایـان بـه وی ددي زمـانـي

اخـلاص ددوی پـه کتـا بچو کښي نـه وی
ځــه رنګ یـاران نـه وی ددي زمـانـي

سـحـّر سیـزلـي ایـري شـوی خـلـقـه !
ځــه مـعشـوقـان بـه وی ددي زمـانـي

نـه مـي یـاران نـه مـي خپلوان وموندل
ځـه رنګ خپـلـوان بـه وی ددي زمـانـي

## ﴿ستمګاره﴾

ځما ښکلي دلداره
تا پرېښودم په لاره

یک دم رانه جدا شوې
سنګ دله ، دل آزاره

حیرانه ، پریشانه
دا ولې شوې ویزاره

دا رسم د خدای نه دے
ظالمه ! ستمګاره

زما د ژوند خوښ وې
تا الاندې کرم ګزاره

اوّل دې ژه مئین کړم
بیا ځان دې کړو نا نجاره

ډیر ښکلي ښکلي لګي
د ښکلو ئې سرداره



وفا در پکښې نشته
سردارئې خو بې کاره

داغونه دې سم راکړه
زړګي دې کړو بیماره

ما هیر نهٔ کړې دلبرې!
زما مینه ، یاد ګاره

نه مینه ، نه وفا شوه
سحّر شولو دا غداره

## ﴿بد رنګ خلق﴾

بد رنګو ده بائیلللي دا دنیا ده
خوش رنګو ده ګټللي دا دنیا

د ښکلو خلقو، ښکلي قسمتونه --
بدرنګو دازله ده ژړلي دا دنیا

چې ښکلي شوي نو ټوله دنیا ستا شوه
د ښکلو پسې ډیره ده ختلي دا دنیا

بد رنګه په خر واره لیټېږي نه وي
په دواړه جامو ښکلوده خوړلي دا دنیا

په سلو کښې به یو وي ، بد رنګه خوش نصیبه
بدرنګه ، بد نصیبه، ازمائیلي دا دنیا

ښکلیو ته هر څوک ، په مینه مینه
رټلي وي د بدرنګو، ماکټلي دا دنیا

بدرنګه له ازله خوار و زار
خوش رنګه خوش نصیبه ګرزیدلي دا دنیا

سحر چې هر څه وائي دا رښتیا دي
عمر وند مې ډیر اوشو ما لیدلي دا دنیا



## ﴿هر څه پاتې﴾

زوال طرف ته لاړم ستا یادونه رانه پاتې
بوډا شومه خپل خدایا ستا یادونه رانه پاتې

د ځایه خوزیدې نشم، بې دمه غوندې پروت یم
بازار شو رانه پاتې، محفلونه رانه پاتې

د شپې به پاسیدمه، ماجانان به یادوولو
وختونه وو د منیې، تیر وختونه رانه پاتې

دنیا فاني فاني ده نن به یم سبا به نه یم
کورونه رانه پاتې ټول ځیزونه رانه پاتې

نظر مې کار سم نه کا، یارهٔسرمې شولوداسې
جهان رانه ټول پاتې شو خیالونه رانه پاتې

دنیا دیوې ورځې خو دنیا کله پوهیږي
دا زمکه رانه پاتې، آسمانونه رانه پاتې

مرګې یاره ارزان دے دا راځې یاره پخپله
هوا سره رژیږمه، خوندونه رانه پاتې

څه شو هغه خلق د کورونو د کوڅو نه
دا هر څه پاتې کېږی، ټول مالونه رانه پاتې

دنیا به څما خوښه وه دنیا پسې په منډه
غمونه رانه پاتې شو، کارونه رانه پاتې

حکیم سره هم نشته، د زوروالي دارو نشته
مرګی له ره روان یم ، امیدونه رانه پاتې

عاشق ومه معشوق ومه د یار میني شاعر کړم
جانان سحر نه پاتې، هم عشقونه رانه پاتې



## ﴿ارمان دې پاکستانه!﴾

ارمان دې پاکستانه!
په ما ګران له کل جهانه
زۀ قربان شمه له تانه
زما خوښ ئې هم له ځانه
ارمان دې پاکستانه!

بجلي په تا کښې نشته
ډوډۍ په تاکښې نشته
روپۍ په تاکښې نشته
دا نۀ وائم له ځانه
ارمان دې پاکستانه!

که دی نود مالدار دی
که دی د جاګیردار دی
که دی نوددلدار دی
ما لیدلی په ښۀ شانه
ارمان دې پاکستانه!

انصاف له تانه تلي
مذهب له تا وتلي
باطل سره ملكري
دا زړهٔ مي پريشانه
ارمان دي پاكستانه !

غريب پكښي ورتيږي
په اور باندي سوزيږي
د لوږى نه مركيږي
رښتيا وائم جانانه
ارمان دي پاكستانه !

د چا په لاس كښي زوروى
د هغه هروختي شوروى
دا نور خلق نسكوروى
رشوت پكښي ارزانه
ارمان دي پاكستانه !



خپل ځان بچ كول گران دى
ډاكه، قتل ارزان دى
واړهٔ او لوئي بي ايمان دى
هر څوك دى سر گردانه
ارمان دي پاكستانه !

حيا له تانه لاړه
وفا له تانه لاړه
غزاله نه لا تانه لاړه
د زړهٔ مي له بيانه
ارمان دي پاكستانه !

روان ئي تباهئ ته
د هر چا زړهٔ كرسۍ ته
سم وگوره جولئ ته
سحر څه وكړى سبحانه
ارمان دي پاكستانه--- !

## «غزل»

پریږده چې قصې د ژوندانه څما تمامه شي
پریږده چې دا کلي دا کوځه رانه ویرانه شي

هر وخت پریشانه، زهٔ جدا جدا گرځیږمه
پریږده چې دا رنګه دنیا نوره ډیره ورانه شي

مرګ هم یاره ښهٔ وی د بې کاره ژوندانهٔ څخني
چې یاراو د اغیار درته همه همه حیرانه شي

راشه اے مرګیه، چرته تللې ئې
واخله روح مې واخله چې لیلا مې سرګردانه شي

بیا به ارمانونه، افسوسونه تل څما کوی
پریږده چې جدا شم محبوبا مې هم ستومانه شي

زر راځه مرګیه ما سحّر له، تهٔ لږ زر راشه
هر څوک په ما تنګ دی چې دنیا همه خوشحاله شي



## «غزل»

عادت دې کړمه یاره ناڅاپې رانه جدا شوې
ستا هجر نه به مړ شم، سمدستي رانهٔ جدا شوې

ما وې څما جانان، څما محبوب ئې زما جانه!
په نه خبره لاړې قدرتي رانه جدا شوې

څما خوږه جانانه، ته زما د زړګي خوښ وې
واپس راله را نغلې، جوړ عمري رانه جدا شوې

رښتیا دی خلق وائي، بې وفادا ټول خوبان وی
وفا درپکښې نه وه، ډیر وختي رانه جدا شوې

د مینې وی اوږدي اوږدي مزلې او سفرې
یو وخت لا تلې نه وی، هوائي رانه جدا شوې

جدا دې یمه یاره، دا څه خاص خبره نه ده
نصیب د سحّر دادې، فطرتي رانه جدا شوې

## ﴿ عزت مې ټول لاړۀ ﴾

عزت مې ټول لاړۀ---
دولت مې ټول لاړۀ---
عظمت، ټول لاړۀ---

حيا مې ټوله لاړۀ---
وفا مې ټوله لاړه---
جفا مې ټوله لاړۀ---
قوت مې ټول لاړۀ---
عزت مې ټول لاړۀ---

ژونددیوي ورځې، دخود دارئ شه وی
ژوند د يوي ورځې، دلدارئ شه وی
ژوند د يوي ورځې، د شه يارئ شه وی
غيرت مې ټول لاړۀ
عزت مې ټول لاړۀ

زړګي مې اوچودلو---
خلقو ډیر اوسيزلو---
سترګو ډیر اوژړلو---
وحدت مې ټول لاړۀ
عزت مې ټول لاړۀ



دښمن ناچاري وکړي
پليتي د هاری وکړي
ډيري نا کاري وکړي
فطرت مې ټول لاړۀ
عزت مې ټول لاړۀ

د چا د سترګو لګيدو نه يمه
اوس وياړد ګرځيدو نه يمه
خپل ياراشنا ته، د ورتلو نه يمه
حکمت مې ټول لاړۀ
عزت مې ټول لاړۀ

ددي د پاسه به نورڅه کچه شم
ددي د پاسه به نورڅه چرچا شم
ددي د پاسه به نورڅه خفه شم
جدت مې ټول لاړۀ
عزت مې ټول لاړۀ

سحر! بس دے، ددي نه مرښۀ ئې
سحر! بس دے، ددي نه پرښۀ ئې
سحر! بس دے، ګوجراجرښۀ ئې
شهرت مې ټول لاړۀ
عزت مې ټول لاړۀ

## ﴿کیله﴾

زۀ به څه وائم اے یاره
ګیله مي ده بسیاره

ما ډیر هر څه لیکلي
کتابونه له اشعاره

که ډیر شعرونه وائي
څوک دي نه مني دلداره

دا هسې بناوټ دے
په دے څه کیږي یاره!

ګیاه راته څوک نه ږدي
ښکاره وائم په جاره

نن مخ د مخ بازي دي
که ځان کړم پاره پاره

دا چا هم محسوس نه کړه
د مورژبه سرداره



دښمن د پښتو ډیر دے
ګیله مي د سرکاره

په شعر درته وائم
پښتو نه بے کاره

پښتو د للمې ګل دے
خپل ښائست لري سینګاره

شډل که یمه خیر دے
زۀ نه یمه بے کاره

پردي د خلقو خوښ وي
ریښتیا وائمه واوره

که داد راله څوک نه کا
شاعر سدا بهاره

اردو که انګریزي ده
د خلقو د زړۀ دهاره

په هر څه باندي پوهه
سحر یمه خود داره

## ﴿غزل﴾

د نا اهلو د خندا شو کوچ کړه یاره!
د کلي تلل په تا روا شو کوچ کړه یاره!

اوسیدل دلته گناه شوه کوچ کړه یاره!
یاران ټول رانه جدا شو کوچ کړه یاره!

زۀ ټاټ باټ له کومي راوړمه غریب یم
زۀ غریب یم مونږ رُسوا شو کوچ کړه یاره!

مینه خپلوي، یاري، له چا کړمه، حیرانه یمه
یاران ټول مي بې وفا شو کوچ کړه یاره!

دا د مالدارو دنیا، دا د خانانو دنیا----
خلق خو ټول د دې دنیا شو کوچ کړه یاره!

زۀ خو شاعر یم محسوسومه ، هرڅهٔ ، هرڅهٔ
نن د سحَر زړگي خفا شو، کوچ کړه یاره!



## ﴿غزل﴾

لاړې--- بوډا شوې،ته له دنیا پریوتې
له هره آشنا پریوتې، ته لا هر چا پریوتې

لاړو بهاردې،خزان دې راغې په زړیدو شوې
جور خاورې کیږې ، ته له هوا پریوتې

کله جانان وې، کله مجنون وې
مینه دې څه شوه ، ته له وفا پریوتې

ځواني دې څه شوه، بهار دې څه شو---
خلقو نه ځان له، جُدا جُدا پریوتې

خفه د لگیرئي، څه پریشانه غوندې
ته له مسکا پریوتې،ته له خندا پریوتې

ذرې ذرې شوې په ځان اخته ئې
سحَر ! لاړې ته له هر کاره ، هم له جفا پریوتې

## ﴿ پیغله ﴾ د چشمو په لیدو مې زړهٔ درد وکړو

چشمې دې مبارک شه ښځې لاړه شوې بوډۍ
مرګې لره روانه شوې ختمېږی دې قصې
یو ورځ وې ناوې یو وړه غوندې جنیۍ
نرې د ګلو څانګه وې په سر کښې دې غوټې

په غاړه دې امیل وو د سرو زرو آویزان
پستې پستې خبرې، خوږه خوږه هر بیان
په زړهٔ کښې به پرته وې لکه ښکلې یو جانان
دا تورې تورې زلفې وې خوارې خوارې چشمان
په مخ به دې خندا وه هر وخت به وې مسکۍ
چشمې دې مبارک شه ښځې لاړه شوې بوډۍ

ښکلې دې وجود وو ښځې ښکلې دې خندا وه
یو نور وو ستا وجود کښې عجیبه یوه رڼا وه
پستې پستې دې سترګې، ځما ښکلې دلربا وه
مینه مینه، مینه وې هر رګ کښې دې وفا وه
یا حوره د جنت وې درنه جوړه شوه ابۍ
چشمې دې مبارک شه ښځې لاړه شوې بوډۍ



په سترګو دې پردې شوې اوس کتل نه شې کولې
د لګیره ئې په زړهٔ کښې اوس خندل نه شې کولې
نظام دې ټول خراب شو هیڅ خوړل نه شې کولې
وجود دې شو بې دمه، پاسیدل نه شې کولې
افسوس چې تا نه جوړه شوه زړهٔ زړهٔ بوجۍ
چشمې دې مبارک شه ښځې لاړه شوې بوډۍ

حیران یمه زهٔ خدایګو چې دا څه وې او څه اوشې
یو ښکلې دلربا وې، محبوبا وې، بیا څه نه شې
دې هر څه ته چې ګورمه، رګ رګ ځما خفا شې
درد یړمه، خوږیږمه دا لیک ځما په زړهٔ شې
یو خوب وې او یو خیال وې دا ژوندون یوه سیلۍ
چشمې دې مبارک شه ښځې لاړه شوې بوډۍ

## ﴿ملنګ يمه﴾

فقير يمه ملنګ يم ملګانو له څوک نه ځي
ملنګ يمه فقير يم فقيرانو له څوک نه ځي
عاجز يم، درپه دريم عاجزانو له څوک نه ځي
رنځوريمه، بيمار يم ، رنځورانو له څوک نه ځي

دا دور د مالدارو ، ياره خلق د مالدارو نه تاويږي
دا دور د غټانو ، ياره خلق د غټانو نه تاويږي
په ما او تا څوک څه که ياره خلق د خانونه تاويږي
څه طمع وي څه يره، ياره خلق د شاهانو نه تاويږي
زۀ خوار يم څه مي نشته دے خوارانو له څوک نه ځي
فقير يمه ملنګ يم ملګانو له څوک نه ځي

د لوږې نه مړ کيږم د جامو درک مې نشته
د سر سورې مې نشته، د کوټو درک مې نشته
په خيټه اوږي تږې، د دانو درک مې نشته
دردېږمه له رنځه، د دارو درک مې نشته
چې خواروي او غريب وي بيا يارانو له څوک نه ځي
فقير يمه ملنګ يم ملګانو له څوک نه ځي



پريشانه درد ديدلي، ژړيدلي يم نو ځکه داسي ليکم
ما هر څه ډير ليدلي ، در ديدلي يم نو ځکه داسي ليکم
کچکول زما په غاړه ګرځيدلي يم نو ځکه داسي ليکم
مضمون په شعر ږدمه پو هيدلي يم نو ځکه داسي ليکم
رښتيا په شعر وائم غريبانو له څوک نه ځي
فقير يمه ملنګ يم ملګانو له څوک نه ځي

زۀ رعب او دبدبه، شان و شوکت له کومې راوړم
راکړي چې خدائ نه دے، زۀ عظمت له کومې راوړم
دنيا خو په قسمت ده،زۀ دولت له کومې راوړم
عزت هم د الله دے، زۀ عزت له کومې راوړم
زۀ بيا هم يو انسان يم، انسانو له څوک نه ځي
فقيريمه، ملنګ يم ملنګانو کا څوک نه ځي

## ﴾کلیه ! تا نه ځار شم﴿

تا زۀ ځنګه کلي کور کړم
تا زۀ ځنګ د زړۀ ټکور کړم
تا زۀ ځنګ د سترګو تور کړم

تا کښي اوسیږي عجیبه ښاماران
تا کښي اوسیږي عجیبه شرمخان
تا کښي اوسیږي ځنګه بد بلاګان
تا زۀ ځنګ په زړۀ راخور کړم
تا زۀ ځنګه کلي کور کړم

د بې درد بې وفاؤ کلي
د بې خوندہ بې خداؤ کلي
د بې منیي، لاپرواو کلي
تا زۀ ځنګ په زړۀ نسکور کړم
تا زۀ ځنګه کلي کور کړم



دلته کښي ټول دنیا پرست دی یاره!
دلته کښي ټول هوا پرست دی یاره!
دلته کښي ټول دولت پرست دی یاره!
تا زۀ ځنګ په زړۀ رنځور کړم
تا زۀ ځنګه کلي کور کړم

د بد اخلاقو شریرانو کلي
دا د بد نیته، حاسدانو کلي
د فسادیونو، شیطانانو کلي
تا زۀ ځنګه د زړۀ نُور کړم
تا زۀ ځنګه کلي کور کړم

دلته د مال او د جاګیر چرچا ده
دلته د خان او د وزیر چرچا ده
دلته د زړۀ او د ضمیر چرچا ده
تا زۀ ځنګه د زړۀ زور کړم
تا زۀ ځنګه کلي کور کړم

زۀ ځم ، د مینې او وفا کلي ته
ځم د اخلاص او د ربتیا کلي ته
زۀ درنه ځمه د رضا کلي ته
تا زۀ ځنګه زۀ خپل رور کړم
تا زۀ ځنګه کلي کور کړم

دلته کښې لوی لوي کبرژن اوسیږی
دلته کښې لوی لوي دروغژن اوسیږی
دلته کښې هر یو سم دښمن اوسیږی
تا زۀ ځنګ کوځه او کور کړم
تا زۀ ځنګه کلي کور کړم

داسې وطن او داسې کلي کښې به څه اوکړمه
داسې کوځو اوداسې کورته به زۀ نه اوکړمه
بې مینې خلقو کښې به یاره! څه د زړۀ اوکړمه
تا زۀ ځنګ د سحر کور کړم
تا زۀ ځنګه کلي کور کړم



## غزل (ځان ته)

لاړلي رنځور شولي د دنیا د کاره پریوتي
هیڅ نۀ شي کولي د دنیا د کاره پریوتي

باغ بهار دے څه شو او ښائسته ځواني دے څه شوه
یاري یاري دے څه شوه د اشنا د کاره پریوتي

مینه مینه مینه او د هر چا دلربا به وے
ټول وفا وفا وے د وفا د کاره پریوتي

خلق خوشحالي کوی، مستي کا، او موجونه کا----
مړاوي مړاوي کیږي هر سبا د کاره پریوتي

ستا ښائسته وجود بې دمه شوي غلي شوي دے
ځان له پریشانه تۀ جدا د کاره پریوتي

کله به شیرنه، او ته کله به فرهاد شولے
ټول ښکلا ښکلا وے د ښکلا د کاره پریوتي

لاړلي تۀ پریوتي سحر! د مرګي په لور
خاوري خاوري کیږي، تۀ سدا له کاره پریوتي

## ﴿غزل﴾

تـه چـي کلـه تلـي ئـي ، زۀ هغسـي غم خواريم
رو غ زړۀ مـي خـوبيـږي ، زۀ پـه تـا پسـي بيمـاريم

زۀ ستـا د وفـا او ستـا د ميني ډير عادت وومه ---
هـغسـي پـريشـانــه ، يـاره ! هـغسـي دلـداريـم

هيڅـو ک داسي نشته چي وفا او مينه راکړی ---
ستـړي کـړمــه هـجـر دي ، زۀ هـغـه بـے قـراريـم

داسـي رانـه ورک ئـي پتـه نشته دے چي چرته ئي
زړۀ مــي ليـونــي دے ، بيـا هـم ستـا پـه انتظـاريم

ولـي او سحؔـر ! دومـره درد دومـره احسـاس لـري
بـرخــه د ازل مــي يــاره ! ځـكـه غـمـګـســاريـم



## غزل (څه او شو)

دا څــه وو او څــه او شـو عـجيبــه زمــانــي تيـري شـوي
بهـــارو و پســرلــے وو د ګــلــونــو مــودي تيـري شـوي

يـــاران چـــي د مــحــفــل وو پـــه رو رو رانـــه جـدا شـولـو
ورک شـو چـرتــه لاړه ، هـغــه ښـكـلـے قصـي تيـري شـوي

مـــاليــارو ومـــه د ګــلــو چــار چـاپيـره خـوشبـويـانـي ---
بـــاغ تـــالا والا شـــو پـــه ګــلــزار مـــي پهـري تيـري شـوي

چـرتــه څـوک مـونـدي نشـي ، پـه کـومـه ګـوري تـلـي دی
لار ، کـورونــه خـوشـي ، څـومـره ښـكـلـي مـزي تيـري شـوي

مـــا چـــي بـــه کتـــل د يـــار د مـخ نـــه شـرميـدم بـــه زۀ
ښـيۍ مـعـشـوقـي تيـري ، څـومـره ښـيۍ دلـبـري تيـري شـوي

زۀ بــوډا بــوډا شــومـــه ، ځــوانـــي پـــه بـلـــه لاړلـــه
مستـــي پـــه بـلـــه لاړلــه ، د زړۀ خبــري تيــري شــو ي

څــهٔ ووايـم يــاره ! دغــه ورځـي شپـي دي مـخـکـښـي دی
دا يـو غـنـيـمـت دے څـومـره څـومـره لمحـي تيـري شـوي

ښـکـلـي ښـکـلـي خـلـق دي مـرګـي يـوه نـمـړي کـړلـه
اے سحؔر ! تير به شي ، ستا هم ورځي تيري شوي

## ﴿ غزل ﴾ ۞یو څو ورځې۞

د یو څو ورځو خندا ده ، د څو ورځو تلهٔ راتلهٔ دی
یو څو ورځو زندګی ده ، بیا ددې دنیا نه تلهٔ دی

یو څو ورځو له پیدا یو ، بیا به ځو له ددې دنیا نه
ډیره لږه زندګی ده بیا هر څه خوارهٔ وارهٔ دی

د یو څو ورځو بهار دے ، د یو څو ورځو ځوانی ده
د یو څو ورځو ښائست دے، بیا هر څه زاړهٔ زاړهٔ دی

دیو څو ورځې خبرې، یو څو ورځو مینه مینه
دیدنونه یو څو ورځې د یو څو ورځو لیدهٔ دی

د یو څو ورځو خپلوی ده د یو ورځو دوستی ده
دا څو ورځې مینه مینه، بیا هر څه تراخهٔ تراخهٔ دی

دا څو ورځې هنګامه ده، دیو څو ورځې یو شور دے
دا څو ورځې ګرمه ګورمه، بیا هر څه سارهٔ سارهٔ دی

ډیر افسوس په هغه خلقو ، چې ئې نظر نه وی د فکر
بې خبره له خپل ځانه، په دنیا اودهٔ اودهٔ وی

ریښتیا وائمه اے خلقه ماپه ډوب نظر کتلی
مالیدلی دی ډیر خلق، نن په خاورو کښې پراتهٔ دی

دا یو څو ورځې ژوندون دے دغه درد زما په زړهٔ دے
سحر وائی ئې په شعر، د قلم مې دا خوارهٔ دی



## آزاد نظم ( ارمان ارمان )

ارمان ارمان ځوانئ---
زمانه لاړلې تهٔ-----
چرې زهٔ ښکلې وومه---
ته وله ښکلا وومه زهٔ---
زهٔ ته وله مینه مینه ---
مخ به مې ښکلا کړله---
سترګو به ځله کړله---
خله د خندا نه ډکه ---
ښنو به مې یو زور کړلو---
ډیره ځوانی وه ځما---
هر یو وینه کښې---
ښائست---
مټو به زور کړلو---
خلې به مې شور کړلو---
زړهٔ به مې زور کړلو---
ملا به مضبوطه دومره---
د غر په شانې وومه--

يو تر پيدلي اسپه---

ستړي کيدمه به نه ---

زۀ خوږيدلم به نه ---

زۀ ودريدلم به نه ---

يو رنګينی په زړۀ کښي ---

يو خوشحالی په زړۀ کښي--

ارمان ارمان ځوانئ

ځما نه لاړلي---

کله جانان به وومه ---

کله مجنون به وومه ---

کله فرهاد به وومه---

کله شيرينه به ووم---

په ګلزار ونو سر ووم ---

او اوس ---

تنها ناست يمه---

ياره بوډا شومه زۀ---

د ځان په سو چ کښي يمه

هيڅ څه کولي نشم---



خلي نه خندا تلي ده ---

زړۀ نه مستی تلي ده---

زړۀ نه وفا تلي ده ---

زړۀ نه جفا تلي ده---

ارمان ارمان ځوانئ---

ځما نه تلي ئی ته---

تا بيا موندلي نشم ---

بيا ژوند کولي نشم---

بيا ژوند راتللي نشی---

ځوانی موندلي نه شي---

بيا به د خاورو سره---

زما وختونه ياره--- !

ارمان ارمان ځوانئ---

زما نه لاړلے ---

ګوري په کومه لاړي---

ګوري په کومه لاړي---

## ﴿غزل﴾

څوک هم یاری نه کړی خلقه! ډیر یاران مي وکتل
ما چي یاران او کتل درمند زړګی مي وژړل

ما به ئي وفا کړله یار به مي جفا کړله
زړۀ به وو مېن څما یار به هسي او خندل

ما ډیره یاری کړله زړۀ ئي څما ستړے کړو
مینه ورپکښي نه وه، سپک په تله او ختل

ډیرو محبوبانو به څما مینه دروغ کړله
بیا مي ورته نه کتل ربښتني زړۀ به وژړل

څکه ئي شاعر کړمه اوراباندي بل شولو
یار که داسي نه کول سحّر به داسي نه لیکل



## غزل (خپل محبوب ته)

ورک شو لي اشنا څما نه ورک شولي
ورک شوې محبوبا څما نه ورک شولي

تش مي په خیالونو په سوچونو کښي ته پاتي شوې
لاړله وختونه سم رسا څمانه ورک شولي

بیا راته ستا مینه ستا وصال یاره! ډیر ګران شولو
ښکلي رنړا ورځ وه ، په رنړا څما نه ورک شولي

د بیلتون تیزه هوا وه ،زۀ ئي یوړمه
ورک شومه لا تا نه، په دنیا څما نه ورک شولي

یاره ستا یادو په غمونو به زۀ صبر کړم
هیر به د سحّر نه شي ، ربښتیا څمانه ورک شولي

## ﴿غزل﴾

ټول ژوندمي تیر شولو اشنا په اکو بکو کښي
لاړمه بوډا شومه ، رسوا په اکو بکو کښي

مست وومه په مینه، په عشق د دنیا کښي
هیڅ مي حاصل نهٔ کړه ، شوم خطا په اکو بکو کښي

هر څه رانه تیر شو لو، اشنا د سترګو آن کښي
ښکلي غوندي خوب وو، هر سبا په اکو بکو کښي

ختم شو بهار، زما د میني او زهٔ مړواي شوم
پاتي مي دنیا شوه، دا دنیا په اکو بکو کښي

لاړهٔ قیمتي ژوندن مي لاړلو ---
هیڅوک د تا نشته، شوي تنها په اکو بکو کښي

هیڅ ډډي مي نه لګی، اوس دے فاني دنیا ته
ترمي ترمي لاړمه ، هوا په اکو بکو کښي

ښهٔ پسرلے، زما د ژوند رانه تیر شوي دے
نه راځي بهار، که کړم ژړا په اکو بکو کښي

ولي اے سحّر! دایو درد د تا په زړهٔ کښي دے
ورک به شي، فنا به شي، فنا په اکو بکو کښي



## ﴿غزل﴾

زړهٔ دے راله تور کړلو اشنا د ټولو ښکلو نه
حوره د جنت که وی ، هم بیا د ټولو ښکلو نه

دي د پاسه مینه او وفا به زهٔ د چا کړمه
وتي ده دا مینه او وفا د ټولو ښکلو نه

هیڅ اعتبار چي او نهٔ کړئ عالمه په هیچا باندي
ښکلي لا پرواه وی ، یم تنها د ټولو ښکلو نه

هسي به دي او سیزی او شي به ته ایري ایري
زهٔ ئي سوزولي، یم جُدا د ټولو ښکلو نه

څکه داسي وایم سحّر مینه داسي کړے ده
واخله ښکلي رښه! دا ښکلا د ټولو ښکلو نه

## غزل (یوه جینۍ!)

نن مې اولیده په لاره
یوه جینۍ وه مزیداره
عجیبه غوندې پیداوه
ما ور وکتل بیساره

حُسن نه وو عجیبه وو
زۀ به څه وایمه یاره
خدائی راته ښکاره شوه
ما کتل به رب د پاره

مې حیران ورته زړګی شه
هر عضو ئې خوشبو داره
دا نرۍ د ګلو څانګه---
تا به وې چې له ګلزاره

څما نه ووځی د زړۀ نه
سحر راوړۀ په اشعاره



## ﴿غزل﴾

دا به مې نصیب وو زۀ د چا نه ګیله نه کړمه
برخه مې بیلتون وو ، دلربا نه ګیله نه کړمه

پرېږده چې ظلمونه ستمونه دې په ما کوی
دا څما نصیب دے د هیچا نه ګیله نه کړمه

خلقو ته چې ګورمه خفه شمه، سوچونه کړم
کانړې په زړۀ کیږدم، محبوبا نه ګیله نه کړمه

بیا به دا بهار د ژوندانه ، څما او نه مومې
راشه مې لږ خواله زۀ د تا نه ګیله نه کړمه

هسې په څان ژړامه د زړۀ دردونه لیکمه
دا خو زۀ شاعر یم، د لیلا نه ګیله نه کړمه

هر څه په نصیب دی دا برخه دا ازله وه
باد د پسرلی څنګه د هوا نه ګیله نه کړمه

څنی قسمتونه تقدیرونه یاره وی داسې---
لیکم په قسمت غزل اشنا نه ګیله نه کړمه

ټول عمر سحر! په فراق کښې ئې ستی کړلے
څکه بے پرواه یم د سبا نه ګیله نه کړمه

## ﴿غزل﴾

زړۀ دے رالــه تـور کـړلـو اشـنـا د ټـولـو ښـکلو نـه
حـوره د جـنـت کـه وی ، هـم بیـا د ټولو ښکلو نـه

چـا راسـره میـنــه ، نـه یاری او نـه وفا کـړلـه
ځـکــه مـې ګیلـه وه دلرباد ټولو ښـکـلـو نـه

سـتـا پـه ډیـره میـنـه کـښـې دلبره لیونـی شومـه
ځـکــه زۀ ګـرځـیږمــه، تـنـها د ټـولـو ښـکـلـو نــه

زړۀ دے رالــه اوچـوو او رو ح دے رالـه سترے کړو
ځـکــه داسـې وایـمــه لیـلا د ټـولـو ښـکـلـو نــه

څــه بــه درتــه وایـمــه حــالـونـه زۀ د خوږزړګی
تــا سـومــې ښــه ویـنــئ، زۀ جُدا د ټولو ښکلونـه

ځـکــه داسې وایم سحّر میـنــه ډیره کـړے ده
واخلـه ښـکلـې ربّـه! دا ښـکلا د ټولو ښکلو نـه

ښــکــلــې خـو د چـا سره وفا او میـنـه نـه کـوی
ځـکـه سحّـر لیـکـی دا رښتیـا د ټـولـو ښـکلو نـه



## ❁د ګند ډکه پیښوره---!❁

د ګند ډکه پیښوره---!
دشور ډکه پیښوره---!
څومره سخا ئي---
ستا فضا توله ګنده ده
ستا هوا توله ګنده ده
ستا هر خوا توله ګنده ده
نن د تا حالونه وائم---
نن د تا رازونه وائم---
پخوانی ښکلی باګرامه---!
خفه کیږمه رانه مه---
هیڅ وفا په تا کښې نشته
هیڅ حیا په تا کښې نشته
حیا توله تا نه تلې---
څومره خلق ستا لمن کښې
خو یو بل باندې شکونه
یو هم ښۀ په تا کښې نشته
فرعونان درکښې اوسیږی
باداران در کښې اوسیږی---

سم خدایان درکښي او سیږي
خپل خیالونو کښي اوچت ځي
خو اوچت ګوري الله دے---
خوږزبان درپکښي نشته
سم یاران درپکښي نشته
د محل ، پیسو په سو چ کښ
دډوډۍ او کور په سو چ کښ
زندګی ئي کړمه تمامه---
کتابونه درکښي ډیر دی
تعلیمونه درکښي ډیر دی
څه سبق په چا کښي نشته
څه ادب په چا کښي نشته
دا ستا څنګه سبقونه ! داستا څنګه کتابونه
د هر چا خیال دے غلط دے---
مذهب لاړه کېده یوړه ---
ستا د کلی د کو څو نه---
د هر چا یو خپل مذهب دے ---
ستا فضا ټوله تیاره ده، ستا هوا ټوله تیاره ده
دهوکه بازه پیښبوره،---!



رشوت خور ئي پیښبوره---!
ټول کرپټ ئي پیښبوره---!
ټول آفت ئي پیښبوره---!
مصیبت ئي پیښبوره---!
کوم چي نه وی تا کښي شته دے
په ظاهر ، باطن پمن ئي
ستا غیرت او پښتو څه شوه
ته خو زوړ پختونستان ئي---
انسان نه ګوری انسان ته
بس د سپی په نظر ګوری
هر یو جال ستا د فریب دے
د ګناه ډکه با ګرامه !
یاره هیڅ به ترې جوړ نه کړې
ستا انجام به ګورې څه وی---
ستا ماښام به ګورې څه وی---
لږ خو و ګوره ګریوان کښې---
اختصار مې درته ووئي---

پە اشعار مي درتە ووئي---
ماپە ستركو تول ليدلي---
ستا هر ځائي دے ما كتلي---
زما زړۀ دے ډير خُوږ كړي---
څكە نن دي بدي وائم ---
دا پە زړۀ كښي مي پراتە وو
سّحر څكە داسي وايم
كە تۀ ښۀ شوي پيښوره---!
ښۀ بە وائم،مي د پلار دادا وطن ئي
ولي ستركي زمونږ پټي---
لا هم نورپكښي ډوبيږو---
لا هم نورپكښي سوزيږو---
ډير افسوس اے پيښوره---!
ستا كو څو تە مي سلام---
اوسيدو تە مي سلام---
خواركو تە مي سلام---
څومره سخا ئي-- د كند ډكە پيښوره--!



## ﴿غزل﴾

ډير نا وختە شە دلبره! هغە ښۀ وختونە تير شو
مي د ژوند ښكلي بهاروو هغە ښۀ وارونە تير شو

ما بە ډيرە يادولي، تە بە خوالە نۀ راتللي
اوس زۀ مړاوي شوي، هغە ستا يادونە تير شو

اوس رنځور يمە دلبره! پە خپل ځان يم اختە شوے
پسرلي د ژوند ن لاړۀ هغە ښۀ وختونە تير شو

څما زړۀ كښي بە دردونە حسرتونە او ستا غم وو
اوس د ځان فكر كښ ناست يم، هغە ستا غمونە تير شو

ستا پە طمع طمع عمر زماني لاړي صنمە!
لږ مي خوالە هم رانغلي، پە ما ډير غمونە تير شو

ما د حُسن او د ميني نە بە ډك غزل ليكولو
سّحر كل وو مړاوي شوي هغە ښۀ ليكونە تير شو

## ﴿غزل﴾

هیڅ به تري جورنه کړي که دا تول‌ه دنیا ستا شي
نور به لیونی شي یاره تانګ به دے خطا شي

ډیرو هر څه کړی یاره چا تري څه جوړ کړي
دوه ورځي ژوندون دے دا هر څه به زر فنا شي

ژوند کښ هیڅ هم نشته هسي خیال او څه خوبونه دی
خیال او خوب به څه وی؟ څه به ستا او څه ځما شي

ښکلي ښکلي خلقو ورځو شپو هسي ورک کړی دی
پته ئي څه نشته، انسان تیر لکه هوا شي

ما یاره ډیر ولیدل، ددي دنیا نه تیر شولو
خاورو کښي پراته دی، سحَر ځکه په ژړا شي



## ﴿غزل﴾

حیرانه یم زۀ تا ته بهارونه درنه څۀ شو
یو ګل وې د ګلاب سرۀ رنګونه درنه څۀ شو

ستا ښکلي زمانه وه ښکلي ښکلي موسمونه
ګلونه درنه څه موسمونه درنه څۀ شو

خزان دریاندې راغے ته ئي سم ورژولي
تالا والا دې باغ شو ښۀ وختونه درنه څۀ شو

قدم اخستے نه شي نه په سترګو څه لیدے شي
ځواني ده تا نه څه شوه ښه یادونه درنه څۀ شو

زۀ ځان کتي نه شمه اوس مرګ لره نزدې ئي
دا څه درسره وشو، دورونه درنه څۀ شو

په زړۀ کښي مي یو درد دے زۀ هر څه ته خفه کیږم
په شعر کښي ئي لیکم، سحرونه درنه څۀ شو

## ﴿غزل﴾

بیا مې پته نه لګی چې را به شم که نه
اے یاره! ژوند فانی دے را پیدا به شم که نه

ډیر زیات دی د انسان مصیبتونه آفتونه
ورکیږمه زۀ تا نه، هویدا به شم که نه

هر څوک چې یو ځل تلي هغه بیا چرته راغلي
عجیبه غوندې ژوندون دے چې بیا ستا به شم که نه

په مینه راته وګوره اے یاره درنه ځمه
ژوندون کښې وفا نشته بیا وفا به شم که نه

سحؔر! ولې لیکې دا د غم ډکې غزلے
دا ځکه ژوند فانی دے بیا اشنا به شم که نه



## ﴿غزل﴾

اے د خارو بُتَ احترام او محبت او پیژنه!
لږ ځان باندې نظر کا خپل عظمت او پیژنه

دنیا باندې پوهیږې نور په هیڅ هم نه پو هیږې
دا سترګې دې کړه وازې حقیقت او پیژنه

په څیز باندې نظر کړے انسان نه وینې اے یاره!
انسان ئې حیوان نه ئې آدمیت او پیژنه

بنګلو د پاره نه ئې د عهدو د پاره نه ئې
الله دا تا مالک دے، ئې قدرت او پیژنه

دا هر څه که تول ستا شی نو به څه وشی اے یاره!
فانی فانی دنیا ده، آخرت او پیژنه

ادب او مینه زده کړه دې دنیا کړې بے ادبه
جذبې د مینې راوړۀ، حیثیت او پیژنه

سحؔر! هر څه ډیر شو، شوکمې د محبت
انسانه مینه زده کړه ادبیت او پیژنه

## ﴿غزل﴾

وصال که نه وی محبوبا،نوستاغمونه چرته تلي نه دی
قرار که نه وی، دلبرانوستا دردونه چرته تلي نه دی

ستا په بیلتون ستا هجران هم ځما وخت تیرېږی
خیر دے که نه راځي دلبره! ستا یادونه چرته تلي نه دی

ما یاره! ستا نه د وفا او مینی طمع کړله
مینه که نه وی دلربا ستا نفرتونه چرته تلي نه دی

ځما د مینی سره مینه، د وفا سره وفا وکړه
مینه که نه وی وفا نه وی، بیا ظلمونه چرته تلي نه دی

عمر مي ټول په بیلتانه ، په جدائي کښي لاړۀ
تا یادوم به په خیالونو، مي شعرونه چرته تلي نه دی

ستا انتظار ستا جدائی را نه شاعر جوړ کړو
سحّر به لیکی دا دردونه فریادونه، چرته تلي نه دی



## ﴿غزل﴾

اے د کرکي ډکه ! احترام او محبت او پیژنه
بغض حسد کاندي، آدمیت او پیژنه

دا دوه ورځي ژوندن دے نن به یو سبا به نه یو
فانی فانی دنیا ده، صداقت او پیژنه

دروغ د تا پیشه ده ، عادتونه د کافرو
دهوکے دراکي مه کړه ،حقیقت او پیژنه

لوئي نه ئي او لوي کوي کم فهمه اے نا دانه !
غریب شه غریبی کوه غربت او پیژنه

انسان ئي خو کارونه یاره کړے د ځناورو
خپل ځان باندي نظر کا خپل عظمت او پیژنه

اخلاق در پکښي نشته او کارونه تر مطلبه!
مطلب او پیژنه، انسانیت او پیژنه

ژوند څه داسي نه دے چي بس بے مهاره ګرزمه
هر څیز باندي نظر کا فلسفه او څه حکمت او پیژنه

موتړو په بنګلو او په عهدو کوي نازونه
لوئی د لوئي الله، ده ئي قدرت او پیژنه

سحّر ته کوم ښهٔ ئي چي کوي ته ښي خبري
ښهٔ نه یم خو دا وایم، نصیحت او پیژنه

خبر یمه په شعر، په ادب او په ښهٔ مینه
یارا ځکه غزل وایمه، جذبي د محبت او پیژنه



## غزل (زندګی)

لاړلے بوډا شوے زندګی دي ټوله ختمه شوه
دم درنه وتلي او ځواني دي ټوله ختمه شوه

چي پاسي کښیناستي نه شي، چي کښیني پاسیدي نه شي
لاړلے کمزوري شوي مستی دي ټوله ختمه شوه

تا به دلبری کړله، تا به ښهٔ یاری کړله
وفا ، مینه دي څه شوله یاری، دے ټوله ختمه شوه

تا به په ښهٔ شان سره د زړهٔ نه عبادت کړلو
اوس لاړي په ځان شوي، بندګی دے ټوله ختمه شوه

ناست یمه مرګی ته زهٔ د مرګ په انتظار یمه
تار په تار وجود دي، هم پیری دي ټوله ختمه شوه

لاړهٔ هر څه لاړهٔ اے سحّر هوا یو لاړلهٔ---
ورځي شپي دے لاړلے شوخی دے ټوله ختمه شوه

## ﴿غزل﴾

ژوند که یاره! سخت دے حوصلې ورته اوچتې کړه
کور که دے اوښان وی دروازې ورته اوچتې کړه

ژوند د تکلیفونو، آفتونو نه تفصیل دے
خط که چرته لیکې بیا معنې ورته اوچتې کړه

مه کوه نفرت، او تر بګنی یاره د چا سره----
غلیم که دې پیدا شو بیا قلعې ورته اوچتې کړه

ژوند خو د غمونو او دردونو یو داستان دے
اوره ئې د زړهٔ نه بیا پښې ورته اوچتې کړه

ژوند باندې نظر کړم اے سحّر څه وشو او دا څه اوشو
لیکه به ئې لیکه دا قطعې ورته اوچتې کړه



## فریادونه

خپله مور مو مړه شوه یاره سپیو با زانو اوخوړو
تورو بلاګانو، اژدها مارانو اوخوړو

مورراته میره شوله، هر څه زمونږ نه لاړلهٔ
زړهٔ مې خفه کیږی خلقه ډیر دردونو اوخوړو

د چار مورچې میره شی نو د پلار سترګې بدلے شی
هر څه هوا یوړهٔ د میرې غمونو اوخوړو

هسې تنګول کوی، دوی هسې بهانې کوی
مال د پاره دا کوی، ئې بد نیتونو اوخوړو

مورې ستا په تلو سره نیمګړې شومه، خوار شومه
خوار شومه غریب شومه، هم دې سوچونو اوخوړو

هیڅ وئیلې نه شو، نه کولې شو---
هر څه دی په زړهٔ کښې د خپل زړهٔ رازونو اوخوړو

سمه خپله موروی، خزانه د کائناتو وی
هر څه مې یا دیږی د خپل مور غمونو اوخوړو

ظلم او ستم مې دا نازک زړګې زغمې نه شی
ځکه سحّر لیکم هغه تیر وختونو اوخوړو

## "خفه"

زړۀ څما خفادے رانه نور شعرونه نۀ کیږی
لاړه زندګي مي رانه نور کارونه نۀ کیږی

ښکلي مي ځواني وه یو بهاروو رانه تیر شولو
هر څه راته نور شو، رانه نور دردونه نۀ کیږی

تول وفا وفا ومه زۀ تولـه مینه مینه ووم
لاړه هر څه لاړۀ، رانه نور یادونه نۀ کیږی

ګرانه زندګي شوه وار خطا وارخطا کیږمه
دغه د زړۀ زور وو، رانه نور زورونه نۀ کیږی

لاړۀ سحّر لاړۀ د ځوانئ وارونه تیر شولو
ځان وته حیران یم، رانه نور شعرونه نۀ کیږی



## ﴿د ارمان خبري﴾

څه د جانان خبري څه د جهان خبري
څه د ارمان خبري، څه د سبحان خبري

ما په کتاب راوړی، د خپل جانان خبري
زما په زړۀ دی پرتي ،څه د ارمان خبري

څه د فنا خبري، څه د بقا خبري
څه مي حالونه د ژوند، څه مي د ځان خبري

څه مي ګيله د خلقو، د خپل احساس خبري
څه مي د زړۀ خبري څه د انسان خبري

څه مي د مينې ، څه د وفا خبري
څه د قرآن خبري، څه مي د ګران خبري

ځکه د الیکم چي شاعریم، سحّر---
کوی په منیه، په ادب د اشاعران خبري

## ﴿غزل﴾

مخ ته کتے نه شمه خپل ځان ته کتے نشمه
بهار وو پسرلے وو اوس جانان ته کتے نشمه

ښکلي ښکلي سترګي وې ښائست د سترګو لاړلو
مړاوے شولے سترګے مي چشمان ته کتے نه شمه

ګير چا پيره ښکلی شو زما نه ښکلا لاړله
ستوری سپوږمي ښکلی، زۀ اسمان ته کتے نه شمه

ښکلي مي ځواني ياره وارد حسن تير شولو
زړۀ مي غواړی هرڅه خپل ارمان ته کتے نشمه

تير وختونه ډير ډير را ياديږی خفه کيږمه
زۀ سحر پريشانه، هر يو آن ته کتے نه شمه



## ﴿تنها﴾

ټول عمر يوازی او تنها تنها زۀ پاتے شوم
ياره ستا فراق کښ په ژړا ژړا زۀ پاتے شوم

يار مي خواله رانغي که هر څو مره ما وژړل
مينی ليونی کړم او رسوا رسوا زۀ پاتے شوم

څوک هم د چا نه کيږی که هر څو مره ئي مينه کړي
وګوره لږ ماتا چي جدا جدا زۀ پاتے شوم

هر وختی په فکر او په خيال کښي د جانان يمه
يار ستم کړلو، وفا وفا زۀ پاتے شوم

ټول عمر فراق کښي او په درد کښ زما تير شولو
دا سحر فقير فقير، خفا خفا زۀ پاتے شوم

## ﴿غزل﴾

په زړۀ کښې مې اوسيږې په ټول تن کښې مې اوسيږې
خيالونو کښې مې اوسې په بدن کښې مې اوسيږې

زما د ژوندون سرې يې ته ځما د روح حصه يې
سندره مې د زړۀ يې په دهن کښې مې اوسيږې

عجيبه دې وه مينه او عجبه دې وو حسن
ګلونو کښې مې اوسې په ګلشن کښې مې اوسيږې

د زړۀ د ننه اوسې ګورې څه وجه ده يارهٔ!
ياديږې مې هر وختې، ته په من کښې مې اوسيږې

مودې اوشولې ياره ستا سحر دې مينه مينه
پرون کښې مې اوسيږې او په نن کښې مې اوسيږې



## غزل (خپلې محبوبا ته)

زۀ په لارو کښې تا ګورم او ته نه ئې
د راتلو لارې دې څارم او ته نه ئې

عجيبه غوندې کتل وو چې مئين شوم
شپه او ورځې زۀ ژړيږم او ته نه ئې

ما ته څه پته دلبرې چې به داسې
ډير به تا پسې خوږيږم او ته نه ئې

تا په لاره کښې غم راکړو زۀ دې خُوږ کړم
ګورې کومه باندې تلې زۀ درديږم او ته نه ئې

چا ته نه وائيم حالونه چې په زړۀ کښې زما څه دي
پټ پټ تا پسې کړيږم او ته نه ئې

ستا په طمع په ارمان لارو ته ګورم
ستا په مينه کښې رژيږم او ته نه ئې

چرې هم به زۀ د تا سره په لاره تلے نه وم
ستا فراق ذرې ذرې کړم او ته نه ئې

زما زړۀ کوی نرې نرې دردونه -----
ستا هجران کښې زۀ خوږیږم او ته نه ئې

لږ خو راشه ما غریب عاشق د پاره
لوګې کیږمه، سوزیږم او ته نه ئې

اوس زۀ ستا پسې په کومه لورې لاړ شم
سودائی شوم، لیونی شوم او ته نه ئې

مې تر مرګه به زړګی نه هیره نۀ شې
یا دوم به دے دلبرے لوګی کیږم او ته نه ئې

ګورې ستا به سحَر یاد وی او که نه وی
ستا یادونو کښې تنها تنها اوسیږم او ته نه ئې



## ﴿اے زړګیه﴾

زړګیه څه دے اوکړل---
دا ته په چا مئین شوے---
دا خو د لارې لولکئ غوندې وه
دا خو د لارې ښا پیرۍ غوندې وه
دا خو د لارې مسافره غوندې
دا ته په چا مئین شوے---!
ګورې په کومه تلے---
ډیرې مو دے اوشولے---
زړګې مې ژاړی پسې---
زړګې دردونه کوی---
سم لیونے دے کړمه---
زړګیه څه دے اوکړل ---
دا ته په چا مئین شوے---!
ولے ته نه صبریږے ---
د ښکلے ښکلے دنیا---
تنے تنها دے کړمه---
زۀ سودائی دے کړمه---
زۀ لیونی دے کړمه ---

د یاریادونو سره---

د یارفکرونو سره---

زړګیه مل د ے کړمه---

ما سره څه دي اوکړل---

دا ته په چا مئین شوے---!

پریږده چي اوس دردونه اولیکمه

د خوږزړګي خبري---

د محبوبا خبري---

وارونه تیر دی زما---

دا ته په چا مئین شوے---!

سحر ! څه دے اوکړل---

څه اوس یادونه کوه---

څه اوس خیالونه کوه---

څه اوس سوچونه کوه---

څه اوس دردونه کوه---



## ۞زما د لار محبوبا---!۞

زما د لار محبوبا----!

کو رې د کوم ځائي به ئي---

کورې د کوم کلي ئې---

کورې د کومو خلقو---

کورې د کومو کوڅو---

کورې د کوم لورى---

زما دے زړۀ ورے دے---

زۀ دے په سوچ کښې یمه

زۀ دے په خیال کښې یمه

زما نادان زړګیه---!

یو ځل دے بیا عاشق کړم

یو ځل د ے بیا مئین کړم

زما د لار محبوبا---!

زۀ خو دے نه پیژنم---

تا ما له درد راکړو---

تپوس کوي نه شم---

چي ته د کوم کلي ئي---
زۀ ستا په لوری ګورم---
زۀ هغه لارے څارم---
چي ته به کله راځے---
زما د لار محبوبا ---!
زۀ ليونی به شمه ---
څکه شاعر يمه زۀ---
ماله دے درد راکړو---
په ما دے اوربل کړو---
زۀ څه کولے نه شم ---
يادونه ما دردوی---
سوچونه ما دردوی---
چي را ته دومره پته---
چي ته د کومي لاري---
زما د لار محبوبا ---!
نو ر درته څه ووايم---
نو ر درته څه اوليکم---



ستا يو ارمان مي په زړۀ---
چي ته جانان وے زما---
زما په خوا کښں وي تل---
زما دے مينه کړله---
په تش يادونو به زۀ څه اوکړمه
زما د لار محبوبا---!
ما چرته هير نه کړے---
زما به هيره نه شي---
سحرؔ، د زړۀ کتاب کښں---
هم په شعری دنيا کښں
اوليکلے! ----- اوليکلے---!
چرته به هيره نه شي---
چرته به هيره نه شي---
زما د لار ملګري---
زما د لار محبوبا---!

## ﴿خپلې محبوبا ته﴾

ستا ښکلي اندازونه څما نۀ هيرېږی
ستا ښکلي سترګي نظرونه څما نۀ هيرېږی

ستا په کتلو به دلبري زه ُبل شاني شومه
ستا ميکده، ستا خمارونه څما نۀ هيرېږی

ستا د وجود هره ښکلا څه عجيبه غوندې وه
د حسن ډکه پريوانه اندامونه څما نۀ هيرېږی

چې رانه تلې ئې دلبري پريشانه يمه
د خپل زړګی تراخه دردونه څما نۀ هيرېږی

څما د لارے هر سبا په تا روښانه به وو
ښکلي سبا، ښه سفرونه څما نۀ هيرېږی

ما چې به اوليدې دلبري ليونی به شومه
زۀ بنديوانه شوم د زلفو، زنځيرونه څما نۀ هيرېږی

سحّر به ټول عمر، دا ستا په مينه وائی غزل
ښکلي وختونه، ښهُ يادونه څما نۀ هيرېږی



## ﴿قطعه﴾

د خلقو په سلوک باندې زړګي څما خفه شي
چې بدو ته ئې ګورمه زړګي څما نشه شي

انسان و ته چې ګورم، انسان نه دې پاتې شوې
د خپل غرض دې يار، په غرض باندې اخته شي

د خدائې د پاره ما چرې انسان ليدلی نه دے
په دې خبره خدايه دا زړګي څما خفه شي

انسان چې داسې شولو مونږ په کومه لوری لاړ شو
خيالونو کښې زۀ ډوب شمه ، زړګي څما اوده شي

## ﴿ښکلي﴾

ښکلی لیونی مي کړی ښکلی رانه زړهٔ وړی
ځان باندې زهٔ پوه نه شم ښکلي مي هرڅهٔ وړی

ښکلي، خلقه! ښکلي وی تعریف به ئې زهٔ څهٔ کړمه
کله مي خوارهٔ وړی، کله مي تراخهٔ وړی

زهٔ ورسره مینه کړم، افسوس دوی مینه نه کوی
هسې راته ګوری دوی ارمان مي ځان سره وړی

عقل رانه لاړشي په خپل ځان زهٔ نه پوهېږمه
مینه مینه مینه شم، په حسن مي دوی ښهٔ وړی

ښکلو سره مینه دا ځما ازلي برخه ده
وارد ځواني لاړهٔ بیا هم دوی ځما نه زړهٔ وړی

غم هم راکوی راله درد هم راکوی راله
ټول وجود مي دوی وړی، سترګي هم بانړهٔ وړی

هر وختي پریشانه، پریشانه یم د ښُکلو نه
چرے هم خپلیږی نه، د میني بد دوی نهٔ وړی

هجر د جانان خلقه ادیب کړمه شاعر کړمه
ټول عمر تنها تنها سحرّ هم ښه دارنهٔ وړی



## ﴿غزل﴾

لاړلو ژوندون ځما، بیا زندګی نه راځي
لاړلو بهار ځما، بیا مي سپرلي نه راځي

ژوند باندې زهٔ پوهه نه ووم هسې رانه لاړلو
ښهٔ وختونه تیر شولو، بیامي ځواني نه راځي

ډیري مودې لاړے، په سبا سبا مي تیرې کړې
لاړه هر څه ورک شو، ځما بیا خوشحالي نه راځي

اولیده دنیا مي یاره ډیر هر څه مي اولیدل
ځي په مخه ځي رانه، ځما تسلي نه راځي

مینه، محبت ډیره وفا به مي زړګی کړله
لاړهٔ نوبهار ځما، بیا دلبری نه راځي

اوګورم که ډیر پسې ډیر که ئې لټون کړمه
توره شپه د ژوند شوله، بیا رنګیني نه راځي

لاړهٔ د سحرّ دنیا لاړهٔ د سحرّ بهار
نه راځي ژوند نهٔ راځي، بیا زندګي نه راځي

## غزل (خپلې ښځې ته)

چې نه د ے ئمه په خوا کښې ارمانونه به مې اوکړي
زما هر څه یا دوي به حسرتونه به مې اوکړي

چې د ے نه ئمه په خوا کښې ، ډیر یادونه به مې اوکړي
چې زۀ ورک شمه له تا نه، ډیر خیالونه به مې اوکړي

ما ته شپه او ورځې دعا کړه چې ژوندې یم ستا د پاره
په ژړا ژړا به ژاړې، افسوسونه به مې اوکړي

هیڅ څوک نشته چې په سرد ې بیا لاس کیږدي
بیا خپل لاس به د ے په سر وی، ډیر سوچونه به مې اوکړي

ځان ته ګورم، تا ته ګورم، کړم دردونه ستا د پاره
تورماران به د ے په خله کا، احساسونه به مې اوکړي

لاړه وارد عمر تیر شو بیا به چرته هم زۀ نه یم
بیا نه مومې سحَرخپل، ډیر دردونه به مې اوکړي



## ﴿جانا نه بدی لګم!﴾

اے زړګیه دا تهٔ څهٔ کړې ؟
دا خو ځوانی نه ده---
پیری ده---
دا مې مستې نه ده---
نیستی ده---
دا مې بهار نه د ے
خزان د ے
زۀ د جانان به خوا کښې بدی لګم
زړګیه بدی لګم---
دا ستا خو وارد ځوانې تیر شو
دا ستا بهار دا ښکلا تیر شو
دا ستا تول وار د مینې تیر شو
ستا ښکلې وار د سپرلی تیر شو
اوس ته د ګل په خوا کښې بدی لګې
ته د جانان په خوا کښې بدی لګې
تل د ځوانۍ سره بهار ښهٔ وی
تل په بهار کښې ښه دلدار ښهٔ وی
ګل د بهار په لاس کښې ښکلې ښکاری
یار د دلدار په خوا کښې ښکلې ښکاری

زۀ خو د منی زیړه پاڼړه ئیمه
لکه په منی چي ګل بدي لګی
داسي زړګیه ـــ!
زه هم بدی لګم
زۀ د جانان په خوا کښ بدی لګم
که مینه هم په زړۀ کښ---
په با غ کښ بدی لګم
چرې بورا به وے ته---
چرې ماليار به وے ته---
اوس پرېږدوه زړګیه
وارونه تیر شولو---
وختونه تیر شولو---
مینه د ګلو مه کړه---
مینه د ښکلو مه کړه---
خدائیګو چي بدی لګم
بس دے قلم باندې جانان یادوه-----
بس دے کتاب باندې خپل ځان سروه
سحّر! بدی لګی------
اوس د جانان په خوا کښ بدی لګی



## ﴿غزل﴾

سترګي مي شوې سترې د لیدو په طمع طمع
زړۀ مـي هـو سيـرې د راتـلـو پـه طـمـع طـمـع

اے لـرې جـانـان !تـا تــه څـه پتـه څـمـا ده
سترې ستا هجران کښ، د مودو په طمع طمع

تـه څـمـا د زړۀ وے جانـه!ته څما سبا وے
ستـا پـه انتـظـار، د خـوشـحـالو پـه طمع طمع

نشـمـه درتلـي دلـربـا، ستـا ښکلـي سبا ته
هسـي زۀ لـوګـی شـوم، د اسـرو پـه طـمـع طمع

بيـا چرې رانـغـلـي، يـاره هسـي وخت تيرېږي
لارې دې څــارمــه، د کتــو پــه طـمـع طـمـع

ډيره نـا مـمـکـنـه ده چي ستا کو څو ته درشم
مـړ بـه شـی سـحّـر ستـا د کو څو په طمع طمع

## د انګریزي نه ترجمه شاعر Joseph Compell

## «آزاد نظم بوډۍ ښځه»

لکه سپینه شمع وی بلیږی
په پاک او ښکلی ځائے کښې
داسي ښائست-------
او ښکلي مخ وی د زړې ښځې
څنګه چې یخنی کښې ------
د نمر رڼړا شی تته
داسي یو ښځه هم
د ډیر کارونو، نه پس------
دډیر عمرونو، نه پس-----
مړاوي شی-----------
ددې بچی ددے نه تول تلي وی----
ددې خیالونه او فکرونه ----
هم ساکن ولاړ وی------
چې د زړې ژړندې د پل لاندې---
ښکلي اوبه بهیږی----
داسي بوډې او زړه ښځه هم وی---



## «غزل»

څنګه ئې پوهه! د پیسو روژونه ښهٔ پیژنې
ته د دنیا تارونه ښهٔ پیژنې، هم د فائدې کارونه ښه پیژنې

قرآن نه لرې د مذهب نه په کروهو لرے
د موبائل،د کمپیوټر، تارونه ښهٔ پیژنې

خورې خبرې، ښه اخلاق، دی درنه تلي یاره
د شرارت د شیطانئ، خیالونه ښهٔ پیژنې

د خپل مذهب په کتابونو کښې نادانه شولې
ته د دنیا خبرې ښهٔ پیژنې، هم د دنیا چلونه ښهٔ پیژنې

خپل ځان دې نه پیژنې ، انجام دې نه پیژنې
سحَرا ښهٔ پیژنې، د دلربا شعرونه ښهٔ پیژنې

## غزل

پـه امیـد مـي ژونـد تـمـام شـۀ تـۀ رانغلـي
د ژونـدون ځـمـا مـابـام شـۀ تـۀ رانغلـي

ستـا پـه طـمـع اومیـدونـو مـي ژونـدون تیر شو
چـي ځـمـاد زړۀ ګـلـفـام شـۀ تـۀ رانغلـي

زۀ لـوګـی شـومـه پـه لارو لارو تـا تـه
ستـا د میـنـی دا انـجـام شـۀ تـه رانغلـي

تـا سـره وه حـقـیـقـی، د زړګـی میـنـه
پـکښـي سـر زمـا سـر سـام شـۀ تـه رانغلـي

خـلـق پـوهـه شـو زمـا پـه پټـه میـنـه
دا خبـر زمـا پـه شـعـر کښـي ډیر عام شه ته رانغلي

ستـا پـه هـجـر کښـي اوس ښـۀ شعـرونـه لیکم
ستـا پـه میـنه کښي اوچت زما مقام شه ته رانغلي

ستـا پـه میـنـه ستـا پـه یاد کښـي تنهـا ګـرځم
دا مـي تـا تـه یـو پیـام شـۀ تـه رانغلـي

یـادووم بـه دے کـاتـۀ، هـغـه راتلـه دے
پـه سحـر شـولـو نـا وختـه نمر په بام شه ته رانغلي



## محبوبا ته!

ورک شولي جانانه!---
ته په کومه رانه لاړلي---
زړۀ درپسي ژاړی---
کوم طرف ته لاړي----
زۀ په کومه باندي درشمه---
کوم لوري ته ورشمه---
خوږ دي کړمه یاره---!
زړۀ درپسي ژاړي----
ستا د مخ---
د میني---
تصور زما په زړۀ دے---
نه هیرېږي یاره---
زړۀ درپسي ژاړی---
کوم لوري ته تلي ئې---
لارو ته دي ګورمه---
نۀ ئې په یو ځائې کښې---
پټ پټ دي زۀ ګورمه---
زړۀ دي رانه وړي دے---
کیدی شي زۀ دے هیر یم---
ما نه نۀ هیرېږي---
زړۀ درپسي ژاړي---
اووینه ما یاره---
بیا په لاره راشه ---
زړۀ درپسي ژاړي---

## ﴿ځنې خلق﴾

خدایه-----!
خدایه-----!
زما زړۀ دے سوزیدلي
داسي وائم
ځنې خلق ما تول کا
ځنې خلق دے چیچل کا
ځنې خلق دے سیزل کا
ځنې خلق دے خوړل کا
ځنې خلق دے وهل کا
ځنې خلق شرمول کا
ځنې خلق هیرول کا
ځنې خلق مرکول کا
ځنې خلق تیرول کا
ولې کړی داسي انسان ؟
ځان ته وائی مسلمان ؟
انسان نه دے خپله ربه!
دادي څه دی پیدا کړي
زما عقل ورته زیر شي



دا وی غټ غټ بلاګان
دا وی غټ غټ شرمخان
دا وی غټ غټ میلوګان
دا وی غټ غټ شادوګان
د دوؤ پښو وی ښاماران
د دوؤ پښوو غټ سګان
زړۀ ئې تورلکه تبې وی
مخ ئې کوږلکه شکرئ وی
ئې ځنګل په زړۀ ولاړ
دازله ښاماران
دازله لړمان-----
هیڅ یو رحم پکښې نه وی
هیڅ کرم ئې له رب نه وی
بیمار نه پیژنې خدایه!
بوډا نه پیژنې خدایه!
معصوم نه پیژنی خدایه
کمزور نه پیژنی خدایه
حق هیڅ نه پیژنی خدایه
چې دا څه دی؟ او دا څوک دی
ځناور د پاک مولا دی

ته به وائي اژدها ده---
ستا انسان سره څۀ کاندی
هیڅ ئي دم او درود نه وی
دوی د سپو هسي غپل کا
دوی د سپو هسي چیچل کا
انسان خس و خاشاک ګنړی
انسان ښکته ښکته ګنړی---
انسان هسي داسي ګنړی---
انسان داسي عبث نه دے ---
ئي په تن کښي لوئي زړګي دے
دا شاهکار د پاک الله دے
هریو آه ئي تر خدائي رسی---
هر فریادئي تر خدائي رسی
رب ئي اوری هر آواز---
دا تخلیق د پاک الله -----
لړ دے پوهه څناور کا---
د زړګی مي دا یو آه---
هر احساس مي لړی آه---
ترې نه جوړ شو دا اشعار ---
د سحّر د قلم څار----!



## ﴿غزل﴾

زړۀ دي رانه یو ړلو، جانانه دادي څه اوکړه
ډیره به شي ګرانه ،څما جانانه دا دي څه اوکړه

اوس به ستا په خیال کښي ستا په فکر کښي زۀ اوسمه
ته به مي ارمان شي، اے ارمانه دا دي څه اوکړۀ

زړۀ څما نازک دے خفه، کیړی دے خوږیږی ډیر
ښه دي دا او نه کړل، په ما ګرانه دادي څه اوکړه

بیا به مي زړۀ وچوی، لیوني به ستا یادونو کښي
ته به ګوري کوم ځاي؛ مهربانه دا دي څه اوکړه

بیا دي زۀ مین کړمه، دا ګرانه شوه
بیا به زۀ ژړیږمه، اے جانانه دادي څه اوکړه

بیا به مي مین زړګي، مینه او وفا غواړی
بیا به وفا نه کوي له ځانه دادي څه اوکړه

یاره ستا په مینه، هم خوشحاله هم خفه یمه
بیا به شم لوګی،زۀ تر آسمانه دادي څه اوکړه

ښکلي ئي ډیر خوښ وی، دی په ښکلي خطا کیږی زر
شو سحّر یواځي، له جهانه، دادي څه اوکړه

## غزل ﴿مینه﴾

خلق زما خوښ وی خو په چا کښې مینه نشته
اشنا کښې مینه نشته، دلربا کښې مینه نشته

زما ورکې زړهٔ ، ډیر دنیا پکښې اوسیږی
کاکا کښې مینه نشته، په بابا کښې نشته

د خوراک او د خبرود دنیا سره ئې مینه
دننه ئې زړهٔ تورروی، په لالا کښې مینه نشته

ته قدر به ئې کړې او تا به پریږوی په ډاګه
یاران وی د مطلب، نن په اشنا کښې مینه نشته

په ځان به دے مئین کړی بیا به نه کوی دے مینه
ګیله یاره د چا کړم، په لیلا کښې مینه نشته

ظاهره مسلمان وی دے په پټه منافق---
خندا کښې ئې هم چل وی، نن سبا کښې مینه نشته

په شعر کښې دا سپینې سپینې ځکه سحّر وائی
حیوان درنه جوړ شوې، هم په تا کښې مینه نشته



## 'رښتیا' نظم محبوبا ته!

ددې د پاسه به نورځه کچه شم
تا زهٔ د دره راشړلې یمه

بیا په قیامت به مې هم ونه ووینې
تا په خپل خیال کښې زهٔ وژلې یمه

زما د مینې ځواب دا خو نهٔ وو
جانانه ډیر دې شرمولې یمه

راضی کیدو له چرې راچې نه شې
تا په تیرو تېرو وهلې یمه

اوس نورو ښکلیو ته مې زړهٔ نه کیږی
یارچې د کلّه نه رټلې یمه

اول چلونه د الفت زده کړه
ولې په زلفو یار تړلې یمه ؟

د یارئ طمع د سحّر او نهٔ کړې
یارزهٔ په سر سترګو و هلې یمه

## ﴿پردی خلق﴾

ځاریږه د پردو نه ---
تاویږه د پردو نه---
قدریږه د پردو نه---
د خپلو نه پردی ښهٔ وی
پردو نه آفریدی ښهٔ وی
چې څو مره درنه لری وی --
هم دوی ښهٔ وی---
هر څه نه لاروی ښهٔ وی
نیکی هم دا پردی کوی
عزت به دے پردی کوی
خدمت به دے پردی کوی
مطلب به دے پردی کوی
عظمت به دے پردی کوی
مینه د پردو خلقو----
یاری هم د پردو خلقو---
دوستی هم د پردو خلقو---



خاطر به دے پردی کوی
خواږه هم دا پردی لګی
خپل به دے په سر وهی
خپل به دے ځیګر وهی
خپل به دے تېر وهی
خپل به دے جاګیر وهی
حق به دے دا خپل وهی
خپل به دے دشمن د سر
یا د تورو سترګو سر
یا به وهی پښو په سر
ځان په تا ګنړی به بر
کینه او بغض دوی کوی
مینه د پردو منه
یاری هم د پردو منه
کرکه د خپلو وٌ منه
رور د رور دښمن وی تل
ترۀ هسې رشته د نوم
ماما هسې بوته د نوم

ځوي به د ماما څه وی
ځوي به د کاکا څهٔ وی
مينه بس د مور منه
مينه د پردو منه
کرکه د خپلو ۋ منه
دا هسي نومونه دی
هر څهٔ وخت ښيئلي دی
دا هر څه درو غ نه دی
ما هر څه ليدلی دی
خپلو نه پردی ښهٔ وی
هر څهٔ نه لاروی ښهٔ وی
ما سحَر ليدلی دی
ځکه ما ليکلی دی
ټول به داسي نه وی يار---!
دا به وی قسمت زما
څوک که داسي نه مني
راشه چي ئی و ښائم



## ﴿غزل﴾

ستا د مينې د وفا هغه وختونه مي ياديږی
د خپل زړهٔ ، هغه دردونه مي ياديږی

تا مئين کړمه جانانه ستا خواږهٔ خواږهٔ کتل وو
ستا د شکلو تُورو سترګو اندازونه مي ياديږی

ځومره ښکلی وے جانانه! په ښکلا دے زړګي يو ړو
هر اندام به دے بل رنګ وو، اندامونه مي ياديږی

چي به را نغلي حيرانه به خفه ووم
ستا راتلهٔ زما په لوري ، قدمونه مي ياديږی

ما به ډيره يادولي په خپل خيال کښي
ستا د مينې او وفا، هغه خيالونه مي ياديږی

بيا را نغلي، زهٔ دے پريښودم په لاره
ستا د مينی ستا د عشق، هغه سوچونه مي ياديږی

ستا فراق او مینې ښه غوندې شاعر کړم
ښه غزل او ښه شعرونه مې یادیږی

تا به هم په ډیرو خلقو کښې کتم زۀ پوهیدمه
د خپل زړۀ او ستا د زړه هغه رازونه مې یادیږی

چې به لاړم به خفه وې، په تا پوهه
په تا پوهه، په تا پوهه ستا آهونه مې یادیږی

هر سبا به زۀ ولاړ وم ستا په طمع
د سحر هغه راتله دے، ستا لیدنه مې یادیږی



﴿هر څه﴾

د څه نه هم څۀ نه جوړیږی
هر څه دي خاوري کیږی

وختونه خاوري کیږی
فکرونه خاوري کیږی

دردونه خاوري کیږی
پیسئ دي خاوري کیږی

بوډۍ دي خاوري کیږی
کټوی دي خاوري کیږی

ډ ګرۍ دي خاوري کیږی
خوراک دي خاوري کیږی

دا څښاک دي خاوري کیږی
دا ژواک دي خاوري کیږی

کورونه خاوري کیږی
د نن کارونه د نن سره شي خاوري

ما ښام کښې تشه سترې
ما تیر نیمه صدی کړه

ما جوړ تري نه څۀ نۀ کړه
دروغ نۀ رښتیا دی

بچی هم خاورې کیږی
بابا هم خاورې کیږی

دا رنګ دې خاورې کیږی
دا شرنګ دې خاورې کیږی

دا خلق څه کم عقل
په هیڅ هم نه پوهیږی

والله که څه تري جوړ کړی
هر څه به خاورې خاورې

سحّر به خاورې خاورې
وختونه دی تیریږی

هر څه خلقه هیریږی
هر څه دے خاورې کیږی



## ﴿غزل﴾

خلقه زۀ شاعر یمه څکه ښکلی خوښ مې دی
مینه مینه مینه یم څکه تلی خوښ مې دی

هر کلي چې اوګورم، ښکلی په کښې اوسی تل
ګورم ئې په مینه تل، څکه کلی خوښ مې دی

څوک چې یو ځل لاړشی هغه بیا کله راغلی دی
بیا نه راځی چرے هم ، څکه دلې خوښ مې دی

ښکلي خاورې شوی دی خاورو کښې ذرې ذرې
اودریږم دعا کوم، څکه څلی خوښ مې دی

مینه او وفا د ګلو نحښه وی
دے سحّر عاشق غوندې، څکه ښکلي خوښ مې دی

﴿ زۀ ﴾

الله نه پيژنم څۀ دے
څناور غوندې پيدا يم
نۀ صورت باندې ښائسته
نۀ سيرت باندې ښائسته
ټوله ورځ هسې ووئيږم
څه بې ډهنګه څۀ بې ټوله
کبرژن يمۀ په ځان
کينه بغض ټول زما دی
ټول کارونه مې خطا دی
هر يو سو چ زما خطا---
په دنيا باندې زۀ مړيم
بے ادبه احترامه ---
خوږه ژبه را کښې نشته
زۀ هر چاو ته سپک ګورم
مړ کوم ئې-----
دهوکه زما فطرت دے



ښۀ ما هرد دے دنيا---
د بل حق په ژبه خورمه---
تنګ نظره يم بد نيته---
دا حرص هوا مې ډيره---
مرګي سم را پسې را غے---
بې د دينه له اسلامه---
به زۀ مړ شم ----
توريو غار به څما ځائے وی
دغه زۀ يم---
دا سحر دے----!
په هوا ژوندون کووم
شپې او ورځې تيرومه
دغه زۀ يم دغه زۀ يم
دا انسان هر يو انسان دے
ربه! خير کړے خپله ربه!

## ﴿قطعه﴾

قسم قسم ښکلي وی عقل مي حيرانه شی
ټول ارمان شمه زړۀ مي پريشانه شی

ښکلی عجيبه غوندې هره يوه زړۀ وړی
نازو اندازونه ئې هو ښيار ورته نادانه شی

بيل بيل ئې رنګونه وی بيل بيل ئې خوندونه وی
څوک غوټۍ غوټۍ شولو څوک پکښي ګلونه شي

## رباعی

چا ته سپک مه ګوره ياره
دا انسان دے ښۀ شاهکاره

لکه ستا چي څنګه زړۀ دے
داسي بل ګنړه دلداره



## ﴿غزل﴾

بيا مي پته نه لګی چي را به شم که نه
اے ياره ژوند فانی دے را پيدا به شم که نه

انسان د پاره ډير مصيبتونه آفتونه
دا توره زمانه ده ، هويدا به شم که نه

هر څوک چي يو ځل لاړشی هغه بيا نه را ځی چرے
دستور څه اړولي چي بيا ستا به شم که نه

په مينه راته وګوره اے ياره درنه ځمه
سبا کښي وفا نشته ، زۀ وفا به شم که نه

سحّر څکه خوليکی داد درد ډکي غزلي
عالمه ژوند فانی دے بيا اشنا به شم که نه

## رباعی ۱

په حق باندې تل اوسه تېمبره چا ته مه
دا خلق فرعونان دي ښکته کېږه چا ته مه
الله زمونږه رب دے بل څوک نشته
ضرر او نفع خدائي کړي، ژړېږه چا ته مه

## رباعی ۲

په څه باندې لوئي کړې ځان ته او ګوره لږ ښکته
ته څه ئې څه به شې، ځان ته پوهه کړه په پته
دنيا ته ، حاضر وخت ته، ځنې مه ګوره نادانه
ډير ښه ښه غورزيدلي، وخت وهلي دي په لته

## ربا عی ۳

تيکدار ئې د رسمونو، پامته دار ئې د ظلمونو
يا دلدار د ښکلو جونو، هوا خوان ئې د مالونو
ته په بله بله سر ئې دا ته څه کوې پوهيږه!
مسلمان ئې ، ته انسان ئې ، ته مالک د عظمتونو



## رباعی۴

چا کښې مينه نشته وفا نشته درته وائم
اخلاص نشته په چا کښې ، رښتيا نشته درته وائم
مينه لاړه هوا يو ړه ، وفا لاړه هوا يوړه
دښمن ډير دے ګير چاپيره، اشنا نشته درته وائم

## رباعی ۵

که ژوندې اوسې طاقت ځان کښې پيدا کړه
که اوچت اوسې همت ځان کښې پيدا کړه
د ژوند سختو نه دے تيښته نا مردي ده
په قوت باندې ژوندون کا، او عزت ځان کښې پيدا کړه

## ربا عی ٦

مه ماتوه زړهٔ د چا، بيا کله رغيږي دا
ټول عمر تور داغ پرې وي، کله صفا کيږي دا
زړهٔ لکه شيشه وي دا نازکه وي---
عکس ئې صفا، نهٔ ښکاري تتيږي دا

## رباعي ۷

مینه چې پیدا شي په آسانه باندې نه ځي
کرکه چې هم راشي درته وایم هسې نه ځي
چې څومره درنه کیږي یاره ځان ساته له کرکې
مینه وي که کرکه، هسې نه ځي داسې نهٔ ځي

## رباعي ۸

ښهٔ خلق ورک شو ټول خراب پاتې شو
که ښهٔ هم شته دے په حساب پاتې شو
څه خیټه ور، څه خوټه ور، څه ګټه ور دي همه
په کومه لاړشو، تا ته خدایا لا ځواب پاتې شو

## رباعي ۹

دا ژوندون څه ټوقه نهٔ ده په احتیاط باندې قدم ږده
هر لمحه خطر خطر دے خپل نظر ورباندې سم ږده
داسې نه ده چې تیریږي نو رڅه نشته
شپه او ورځ چې درنه لاړه نو خپل نم ږده



## رباعي ۱۰

سوال د چا نه مه کړه، څوک څه نه نشي ورکولے
څه به دا انسان وي، او څه ئې چونګ موټې خزلې
غواړه د هغه نه خزانې ئې ډکې ډکې
نشته دې یقین دے، خپل هوس ئې شرمولې

## رباعي ۱۱

ته په خُله باندې لاس کیږده چُپه خُله اوسه مدام
مه ویښیږه ته بے واره، درته کرمه دا پیام
خپله خُله کښې حکمتونه، دي عقلونه څه بیسیاره
سلامت به همیش اوسې چې مې واورې دا کلام

## رباعي ۱۲

چاته مه ګوره په سپکه ستر که یاره
سپک نظر کړي د مخلوق زړګي آزاره
خپل زړګې ته دې لړ پام اوکړه داسې بل وي
دا خپل ځان به دې دورند نشي اے هوښیاره

## ﴿قطعه﴾

ته په څه باندي کينه او بغض کاندي
ستا زما سره څه کار، زما ستا څه کار

دا دنيا ياره فاني ده مونږ به څو نه
ځان ته وګوره په ځان شه خبردار

بل ته مه نيسه ته ګوتي چي دي داسي
اول ځان و ته نظر کړه سم قدم کيږده په لار

دا وړي وړي خبري دي کړه شاته
بيا به ژاړي درته وائم په زارزار

## رباعی ۱۳

پابندی وی په بل شاني، آزادی وی په بل شاني
پاکي وی په بل شاني ، مرداری وی په بل شاني

پابندۍ کښې سخته سخته، آزادۍ کښې نرمه نرمه
غريبی وی په بل شاني، مالداری وی په بل شاني



## غزل ﴿لوئ خلق﴾

افسوس په لويو خلقو په هوا باندي سوارۀ دی
په ما باندي سوارۀ دی هم په تا باندي سوارۀ دی

خانان مست وی په خپل مال، او په خپل ما ل باندي نا پوهه
سوارۀ په ټولو خلقو، په هر چا باندي سوارۀ دی

انسان د خاررو لوښی دے په بره ولي درومی
لوئی د دوی عادت دے، په فضا باندي سوارۀ دی

دوی ځان منفرد ګنړی چي لا مونږه څه بلا يو
کم فِهمه دی بے عقله، په دنيا باندي سوارۀ دی

د حق نه لري لري پته نه لری چي څه دی
راځی به په بل مخه ، په سبا باندي سوارۀ دی

لوئی نه دی، ځان ته لوئی وائی کم عقل
الله دي ئی کړي پوهه ، خپل ادا باندي سوارۀ دی

پوهه شی به هله چي ورلاندی شی په خاورو
سحؔر ! نه پوهيږی په قضا باندي سوارۀ دی

## رباعی

ځان په نورو باندې بر مه که برنۀ ئې
تول له خاورو پیدا شوی څه لرنه ئې
ته له خاورو نه پیدا ، یو ځل به خاورې
کائناتو کښې، نه بل څۀ ، تۀ غرنه ئې

## رباعی

بدنیتي له هیچا مه کړه، ددې نه څه جوړیږی نه
ګرانه زندګی ده بدنیتی باندې سمیږی نه
که ته وکړې بدنیتی، نو څه به اوکړې
ځان به هسې ور لوګی کړې، بدزړونه خوشحالیږی نه

## رباعی

چې مور دے نۀ وی نو نیمګړې به ئې
چې کور دے نۀ وی نو زړۀ ستړے به ئې
په مور او کور باندې زړګې آباد وی
دې پردو خلقو ته ، خسنړې به ئې



## ﴿غزل﴾

زۀ به څه صفت د تا کړم په خوبانو کښې یو حوره
ئې د مینې وفا ډکه ولې اوسې رانه دوره

ځومره ښکلې نازبینه، با ادبه محترمه
هر وخت زړۀ کښې ته زما ئې، هم په ژبه تۀ مذکوره

ډیر په مینه احترام دے رانه نور خوبان په شا کړۀ
اوس مې نوی محبوبا ئې، اوس مې ته ئې د زړۀ سره

ستا صفت په کوم الفاظ کړم ستا ادب په کوم انداز کړم
د وفا مینې سروره ، اوس ئې ته زما دلبره

تا د چا سره وفا کړه، مینه نه ئې پیژندله
دا رښتیا د تا عاشق دے ته ئې ځومره بختوره

داد شعر فن څه نه دے چې مې یو کړه
ستا د مینی عجب خوند دے، ستا له مینی یم مجبوره

ددې کرکې په دنیا کښې ولې مینه مینه کړې ته
وفا مینه، یو پټ راز دے ښکاره مه وایه سحره

## رباعي

که ته ځان ډير ورنزدې کړې، خو د خان او غريب نه کيږي
دواړه بل بل شاني ، د چالاک او مجذوب نه کيږي
دا د رب قدرت دے هر يو څيز کښې ئې تضاد دے
بې ايمانه څنګه، چې نيکي او ثواب نه کيږي

## رباعي

هر چا وته نظر کړه، د انسان نه عقل زده کړه
کله څنګه کله څنګه ، د آسمان نه عقل زده کړه
وګوره دا هر څه، کائنات هم يو کتاب دے
زمانه عقل زده کړه ، د حيوان نه عقل زده کړه

## رباعي

چې خواږۀ په چا کښې نه وي نو خواږه څنګه پيدا کا
چې تراخه نه لري زړۀ کښې نو تراخۀ څنګه پيدا کا
هر يو څيز په بيل بيل خوي الله پيدا کړو
چې سختي ورپکښې نه وي نو سختي څنګه پيدا کا



## ﴿جانان ته!﴾

دا زړهٔ مې راته وائي چې يوازے وسيدلې
هيڅوک مې خواکښې نه وې په ما څوک نه لګيدلې

چې سوچ کښې د جانان زۀ چرته ناست وې غلې غلې
په خيال کښې د جانان سره ، خبرې مې کولې

چې ناست وې غلې غلې خپل جانان مې يادولې
په يادو د جانان مې خپل زړګې قلارولې

زخمونه مې د مينې په مزه مزه کتلې
په غم مې د جانان دا خپل زړګې ټکورولې

دنيا نه لرې لرې څوک مې خوا له نه راتللې
تنها چرته زۀ ناست وم او ما څوک هم نه ليدلې

په چا کښې مينه نشته ، مينه خلقو نه وتلې
چې زۀ وې او جانان وے ما جانان و ته کتلې

دا مینه مې ربښتیا ده لکه هیر او د رانجها
غوښتلې مې تش هیر، زۀ رانجها وے ګرځیدلې

دا مینه مې ربښتونې د شیرنې د فرهاد
فرهاد غوندې په مینه کښې ما غرونه کنستلې

تنها تنها زۀ ناست وې په کرو هونو چرته لرې
په هجر د جانان، ما په زارو زارو ژړلې

په غم کښې د لیلا لکه مجنون په شاړو تلې
قلم د سحّر لاس کښې، او شعرونه مې لیکلې



﴿قطعه﴾

بازار کښې خو ته ګرځې، مقبره د تا نه هیره ده
په خیال کښې خو ته ګرځې، هدیره د تا نه هیره ده
په غم کښې د بنګلې ئې، جنګله د تا نه هیره ده
امریکې ته خو روان ئې، مدینه د تا نه هیره ده

﴿قطعه﴾

ژبه بنده ساته، څومره درنه کېږی
آفتونه ټول ددې ژبې لاندې
خوږۀ ژبه رونړ تندی لوئی غنیمت دے
تیزه ژبه ګونج تندی کړی سړی لاندې

﴿قطعه﴾

زۀ چې کوم ځائې ته ورځم، زړګې بائیلمه
دا مې غټه کمزوری، حسن پرست یم
قدر کړی زما د مینې همه ښکلی
کړکه نه کړم زۀ په مینه زبردست یم

## ﴿غزل﴾

ستا جدائۍ ستا انتظار ستړي کړم
ظلم و ستم زۀ د دلدار ستړي کړم

مودي کلونه شو دا تلي رانه---
ښکلي سپرلي ښکلي بهار ستړي کړم

په هغو لارو چي راتللي ورته ګورمه تل
ستا د راتلو په طمع ګورم هغه لار ستړي کړم

ما وے جانان مي اوموند، ما وے ارام مي اوموند
ذري ذري شومه خپل يار ستړي کړم

هيريږي نه لا مي په زړۀ کښي اوسي
هر وخت زړۀ ستړي هر سحّار ستړي کړم



## رباعی

د هر وګړی څه عزت او حترام پکار دے
خدمت د هر چا، او د هرچاهم، سلام پکار دے
بے احترامه، بے ادبه څه انسان خو نه وی
په هر شعر کښي سحّرا! څه پيغام پکار دے

څني خپلوانو نه پردي ښه لګي
څني ګلانو نه ازغي ښۀ لګي
چي نه ئي حسن، او نه مينه لري
د داسي ښځو نه سړی ښۀ لګي

## ﴿غزل﴾

ګوري په زړۀ کښې به دي ياد يم او کنه
څۀ تلوسې کړي د ورتلو ، چې ورله ځم او کنه

د درخانئ او په شانې ، ما ته د شيرني په شان
زۀ ستا په خيال کښې، به فرهاد ئِمه آدم او کنه

په خپله جاله کښې ققنس غوندې ايرې ايرې شوم
ستا به چشمانو کښې به وی، يار چرته غم او کنه

ستا په يادونو کښې غزلې ښۀ شعرونه ليکم
ځما په ياد او ستا په زړۀ به، چرته غم او کنه

زما په څُله ، زما په زړۀ کښې ته هميش پرته ئې
ګوري په مينه زما اخلې، تۀ به نوم او کنه

ما ته دلبرې ددې کل جهان نه غوره ښکارې
ګوری سحّر به ستا نظر کښې، داسې سم او کنه



## ما ته که وے پته----!

ما ته که وے پته چې بيا نه راځې
ما به د ځان سره بوتلې وے تۀ

ما ته که پته وه چې خوږيږمه زۀ
ما به طبيب غوندې د ځان سره ساتلې وې تۀ

ما نه چې جدا شولې زۀ پوهه شوم
ما په ډيره مينه، په وفا به درکتلې وو

ما ته دا څۀ پته، چې بيا نه راځې
تا د کلې کورپته به ما ته را ښئيلې وو

اے زما دلبرے! اليونې شومه---
تا مونډلې نشم را ته لږ به دې ليکلې وو

ټول دروغژن نه وی رښتيا هم شته په دنيا کښې
ستا نه ګيله نه کړم ،سحّر مخکښې هم ژړلې وو

## له کو رونو---!

له کورونو سړی ورک شی
له دردونو سړی ورک شی
دا کورونه کوځی پاټي---
دا ښائسته ښکلي منظري
هوا ګانو نه دا ډکي ----
داخوري وري دی لاري---
دا رنړا رنړا ملکونه---
دا تيارۀ تيارۀ وختونه---
داسبا----
دا ښکلي شپې---
هر څه وی او مونږ به نه يو
دي دنيا نه سړی ورک شی
داسي نه وی چي راغلي---
عجيبه غوندي نظام ---
دا خبره ډيره ورانه ---
پته نه به لګی چاته ---
چي ته نه وې او که ته نه وې
پوه شه پوه شه ---
درته وائم ---
چي دا څه دی ----
ورکيدل دی ---
ورکيدل دی ---



## ﴿غزل﴾

څنی خپلوانو نه پردی ښه لګی
څنی ګلانو نه ازغی ښۀ لګی

چي نه ئې حسن او نه مينه لری
د داسي ښځو نه سړی ښۀ لګی

چي په کلونو دے تپوس نه کوی
داسي نزدو نه دوری ښۀ لګی

ننګ او پښتو هم د پښتون نخښه ده
پښتون ننګيال او غيرتی ښۀ لګی

څنی په غټو غټو ګوری په نشه کښي وی دے
چي مينه کړی، نوبيا ساقی هم شرابی ښۀ لګی

که د خپل کو روی چي په تا باندي ژوندون تنګوی
څه به کړي داسي، بيا به تا ته ګاونډي ښۀ لګی

په الف ب چې نه پوهیږي، زه به څه ئې کړمه
په اشارو چې پورته کیږي، کتابي به لګي

وجود رنځور چې شو، هر څه دے لاړه
ښکلي ښائست، ښکلي شباب، ښکلي ځواني به لګي

چې درله به نه وي، خوړونه پرهیز وکه مدام
چې پرې به کیږي که تراخه وي داوئي به لګي

سحَر! شعر د عقلونو حکمتونو به وي
د میني خلقو ته شعرونه روماني به لګي



## پښتوا

یا زه بدل بدل شوم یا دنیا بدله شوه
پښپله ورته وګوره، فضا بدله شوه

پښتوا به سادګي وه عاجزي به وه چارچاپیره
څه بله زندګي وه اوس صفا بدله شوه

پیاده پیاده مزلي به کولي ټولو خلقو
هوا کښي ټول روان دي دا هوا بدله شوه

ساده وو خوراکونه یا به ساګ یا به پیتي وه
خوراک بدل بدل شو هم حلوا بدله شوه

شلیدلي به جامي وے ځنګونو نو کښي ټکړي
د ښکلو زمانه شوه، هر ادا بدله شوه

دا رسم دا رسمونه دومره نه وو په زور شور
لیدلي مي هر څه دي میلمستیا بدله شوه

پښتوا پرده پرده وه ښځه نه شوه چا لیدلي
اوس سیرې ئې جامي وي دا لیلا بدله شوه

پښتوا به هر انسان په بل انسان خفه کیدو
سحَر! زړونه کاڼري شو ژړا بدله شوه

## رباعي

پــه آســانــه زړکــي مــه بدوه چــا ســره
رورســــره ، دادا ســـره ، مــــامـــا ســـره
چــي زړګـي يـو ځـلـي روان شـی نه بنه کيږی
جــوړه تــربــګنــی شــی، پــه رښتيــا ســره

## رباعي

پــه يــو دم کــښ زنـدګـی تـولـه تباه شـی
يــوه لــويـــه زنـدګـــی تـولـــه هــوا شـــی
داســـي تــنـــدرپــــه ســری د لــري راشــی
چي نه خيال او نه ګمان، به دي په خوا شی



## غور وکړي!

پــلاران مــو څــه شـو پــه دے غـور وکـړي
نيــکـان مـو څــه شـو پــه دے غـور وکـړي

کــورونـــــه هــم تــــالا والا شــو درنـــــه
بــوډا ګـــان څــه شـو پـــه دي غـور وکــړي

هــغـــــه د تــورو خـــاورو لانــدي تــلـــي
ګـاونــډيان څــه شـو پــه دے غـور وکـړي

دومـره نازونه ته په ځان او په جهان مه کړه
خــانـان مـو څــه شـو پــه دے غـور وکـړي

نــن بـــه ژونــدي، سبـــا د خـــاورو لانـدي
ښــه ځـوانـان څــه شـو پـه دي غور وکـړي

چـي په کـو څـو کښـي ګـرځيدل به څۀ شو
عـــاجــزان څـــه شـو پـــه دي غـور وکــړي

ستاپه شان ډيروشاعرانو ښۀ ليکل کړی دی
شـــاعــران څـــه شــوپـــه دي غـور وکـړي

## د ښو خلقو پسې

د ښو خلقو پسې مړ شوم
خدايا څه شو ښکلي خلق
دا د څهٔ خلقو دنيا شوه
داد چا نه نهٔ ده پته---
انسانی ژبه شوه څنګه--؟
انسانی دنيا شوه څنګه--؟
ژبه ورو کښې اوسيږی---
چې څه وائی بد به وائی
چې څه اورې---
بد به اورې--
يو خبره---
دوئمه جنګ ---
څومره بد بد ئی خيالونه
څومره بد بد ئی نيتونه
د سړی بچې څوک نشته
خپل پردې وريکښې نشته
کشر مشر پکښې نشته---

خپل پردی وريکښې نشته
خوږ، خوارهٔ وريکښې نشته



هر سړې د وچې خان
هر سړې دے بد زبان
دحرص هوا نه ډک
هر سړې ځان له فرعون
هر سړې ځان له يو خان
هر سړې وړکې خدائی
هر سړې دے نواب خان
هر سړې دے باچا خان
هر سړې د بل خيال نه کړی
د دنيا فکر دی وړې---
په صحيح ژوندون کښې مړې
د ښو خلقو پسې مړ شوم---
د مطلب دنيا دنيا شوه---
د پيسو دنيا دنيا شوه---
په هوا باندې سوارهٔ---
په يو تال کښې دی راون---
د ښو خلقو پسې مړ شوم--
د ښو خلقو پسې مړ شوم---

## بدله شوه

یا زهٔ بدل بدل شوم یا دنیا بدله شوه
پخپله ورته گوره،دا فضا بدله شوه

پخوا به سادگی وه عاجزی وه ناپوهی وه
ښکلی زندگی وه اوس صفا بدله شوه

پیاده پیاده مزلي به کولي ټولو خلقو
هوا کښې ټول روان دی اوس هوا بدله شوه

ساده ساده خوراک به وو یا ساګ او یا پیتی
خوراک بدل بدل شو هم حلوا بدله شوه

شلیدلي به جامې وې څنګونا نو کښې ټکړې
فیشن وته وګوره، څنګ ادا بدله شوه

دا رسم دا رسمونه دومره نه وو په زور شور
نخرې شوې قسم قسم ، میلمستیا بدله شوه

پخوا پرده پرده وه ښځه نه شوه چا لیدلې
اوس سیرې جامې ګرځي نن لیلا بدله شوه

پخوا به هر انسان په بل انسان خفه کیدو
سحر! زړونه کانړی شو ژړا بدله شوه



## غزل

څما جانانه! ماته د ټولو نه نن ښکلي ښکاري
مخ دې رنړا کړی د سپوږمي غوندې سپیځلی ښکاري

څما په سترګو کښې ښکلا ده که ستا مخ ښکلي دے
ښکلي وجود لري دلداره سم بخري ښکاري

ښکلي بدن، ښکلي ادا دے هم په طبع ښکلي
زما د زړهٔ ئې ، څما جانانه! د زړهٔ څلي ښکاري

څه نرم نرم د مالوچو پاغونده ئې سمه
څما ساده ساده جانانه ښه کوتلي ښکاري

زهٔ چې غزل دریاندې لیکم غزاله ئې څکه
سحر له راشه دیدن راوړه ، غلي غلي ښکاري

## رباعي

چې وخت تیر شی شُکر وکړه ، هر لمحه آفت دے
پـه سجده شـه ذکر وکړه ، زور آور د خدائی قدرت دے
بـدو ورځـو، بـد وختـونو تـه پـه زوره آمـان غـواړه
روغ وجـود یو لوئی نعمت دے، دا نادره ښهٔ دولت دے

## قطعه

په اختیاط زندگی نه ده په قسمت ده
چې راځی د ډیر اختیاطه سره راشی
زندگی یو لوئی قسمت غواړی ازل نه
خوشحالی او تباهی له خپل قسمته سره راشی



## خپل پرنسپل صاحب حاجی بهادر خان مروت

چې لکی مروت ته بدل شو څلور کاله پس چې رخصت شو نونازک او شاعر زړهٔ دفتر ته ولاړ ژاړی او دا نظم لیکم۔۲۰۱۷۔۰۱۔۰۱

ایم طارق سحر ایس ایس ټی کاټلنګ

### پرنسپل صاحب ته!

ستا کرسی خالی خالی ده
ستا ګدئ خالی خالی ده
ستا دفتر خفه خفه دے
هر بشر خفه خفه دے
ستا میزونه په ژړا دی
تیر وختونه په ژړا دی
قلمدان دي خفا ژاړی
استاذان هم خفا ژاړی
نو کران درپسی ژاړی
چاکران درپسي ژاړی
ستا دفتر کښ خاموشی ده
ګیر چا پیره پکښې نیستی ده

وے ملنګ غوندي افسر

وے بل رنګ غوندي افسر

ته بل رنګ خو پرنسپل وے

وے ملنګ خو پرنسپل وے

ستا څيزونه په ژړا دی

تول وختونه په ژړا دی

کله کله به ژړل دے---

کله کله به خندل دے ---

ته معذور عاجز به ناست وے

ډير بي وسه دوُر به ناست وے

ته بهادر وے بهادر خانه ---

ته وے ډک له ډير ارمانه---

چي به راغلم ته به ناست وے

اے بهادر څومره راست وے

نا غرضه به دي ځان کړو

که ناوخته به زهٔ راغلم

که بي وخته به زهٔ راغلم

هره ورځ به دے احسان کړو

تا به هيڅ هم ماته نه وے

ته تنګ د له چا ته نهٔ وے



زما زړهٔ په تا ډاډه وو

د تا زړهٔ څومره ساده وو

کله هم په برندو سترګو

کله هم په ژوند و سترګو

ما ته هيڅ نه دي وئيلي

ما ته سخت نه دی کتلي

ستا ساده ساده خبري

په معنی ګنبي وي ژوري

دلته خلق وو ناپوهه

عجيبه غوندي بے سوزه

ستا دا زړهٔ چا نه ليدلو

زړهٔ دے خلقو ته ښودلو

ستا قلم خفه خفه دے

هر قدم خفه خفه دے

زما زړهٔ درپسي ژاړی

ستا تصوير راته ولاړی

د کاټلنګ وارونه تير شو

ستا د زړهٔ دردونه تير شو

ته کاټلنګ نه مرور وے

خو په زړهٔ ښه زورآور وے

ستا یادونه دلته پاتې
ستا دردونه دلته پاتې
کله کله به ژړل دے
کله کله به خندل دے
سکول خفه خفه دے ژاړي
ستا یادونه زړۀ رانغاړي
هر ادا دے رایادیږي
هم ژړا دے رایادیږي
لاړې لاړې رانه لاړې
ته په کومه چرته لاړې
هر یو کس په سوچ کښې تلے
کله ته زمونږ وتلے
دغه واروو د تا تیر شو
ډیر عالم د خلقو هیر شو
دروازه بنده پرته ده---
ستا کمره بنده پرته ده---
بیا به رانشې وختونه
د سحر د زړۀ دردونه
زړۀ ولاړ---کړم ستا سوچونه
اوس په تا لیکم شعرونه



## ډیرونه مودو پس!

ډیرو مودو نه پس مې ولیدلے
ګوره په کومه رانه تلے وے ته---
ته مې چې اولیدلے خوږ شوم
بیا په خپل ځان نه پوهیدمه
هسې اوتر اوتر مې سر شو
هسې نشه نشه مې سر شو
ګلې! زۀ بیا دے سودائی کړم
زما خو اورد زړګی مړ وو
دو باره بیا مې اور تازه شو
بیا مې کاغذ قلم ته لاس کړو
چې زۀ پرې اولیکم حالونه
چې بیا زه اولیکم دردونه
چې ته مې اولیدلے خوږ شوم
دا ستا دیدار عجب دیدار وو
د سترګو رپ کښې رانه تیر شو
ګلې په لاره رانه لاړې---
زۀ شوم حیرانه پریشانه---
ګلې نن بیا مې زړۀ راپوته
ګلې زۀ بیا شاعر شاعر شوم
سحر به بیا ستا انتظار کړم
ګلې ته نه ئې---
زۀ به سوزم---

## خپلو کتابونو ته ولاړ

اے چې ژبه دے خاموشه
څنګه څنګه غلي غلي ناست ئې
اوس خاموشه اودۀ پروت ئې
ډیر عزت دے راله راکړو
ډیر دولت دے راله راکړو
ډیر عظمت دے راله راکړو
شخصیت دے راله راکړو
عجیبه غوندې دې خوی دے
زما نخښه د شباب ئې
زما نخښه د ځوانۍ ئې
زما مینه زما روح ئې
تا وفا ماله راکړې
تا جفا ماله راکړې
تا ریښتیا ما تا ښودلې
دلداري ما تا ښودلې
تا عقلونه ماله راکړه
تا دانا کړمه کتابه-----!
احترام دے راته اوښود



تا ادب ماته رازده کړو
تا یقین زما ډیر پو خ کړو
دے دنیا باندې خبر شوم
کائنات باندې خبر شوم
تا ښه خوی ماله راکړې
عاجزي ماله را کړې
د آخر رڼا دے را کړه
ته سودا زما د ژوند ئې
د تاریخ په لاره لاړم
ستا قیمت چاسره نشته
زۀ ولاړ--------------
او تا ته ګورم---دا مې درد---
دا مې احساس------
ستا ملګرې ، زۀ هلک ووم
اوس بوډا شوم نو جدا شوم
ستا احساس زما سره دے
زۀ به نه یم ---
زۀ به نه یم ---
په الله مې ئې سپارلے
اے کتابه، اے کتابه---

## غزل

هر څه پټ ساته، په زړهٔ کښې، چا ته مه وايه حالونه
که زخمي شوے نو مرهم وربانديِ کيږده، چاته مه ښايه زخمونه

خلق خاندی خوشحاليږی، که ته پريوتې په زمکه
عقل دادے حکمت دادے، چاته مه کړه فريادونه

خپل خالق ته فريادوکړه، چې لوئی رب دے
چې څه کيږی هغه کړی ئې، نورعبث دی ستاوهمونه

خپل دردونه دی په خپل زړګی کښې ښهٔ دی
هيڅ څوک نه اخلی ، د بل د زړهٔ دردونه

د خپل ځان علاج پخپله کړل پکار دی
دا هسې هيڅوک چرته نشته، چې د بل کړی ټکورونه

عمر تير شو زمانی، سحر کړو پوهه
اوس دے خلقو ته سبق کړم، خپل شعرونه

زړهٔ بيا ټول عمر خفه وی، چې خفه شی
زړهٔ ساته د انسانانو د چامه اخله ازارونه

عمر تير شو زمانې سحؔر کړو پوهه
اوس دے خلقو ته سبق کړم، خپل شعرونه



## زړګيه!

زړګيه غلې غلې
زړګيه ولې ولې

د ښکلو نه لرې واوړه
ته شې به ځلې ځلې

د چا په حسن څه کړې
دا ځان له نازولې

دنيا کړې ستړې ستړې
ته ځان له زړهٔ چاودلې

دا ښکلي وفا نه کړی
ته واوره د اليکلې

په مينه کښې شاعر شوې
زړګيه چا رټلې

هيڅوک د مينې نشته
ته ډير وګرځيدلې

نادان نه ئې هوښيار ئې
دې ښکلو ژړولې

لتاړه دې دنيا کړه
ته حق ته رسيدلې

سحؔر! ته فقير ئې
الله ته رسيدلې

## غزل

ورځ چې په خیر بانديږ دي تیره شوه نو شُکر وکړه
په سجده شه، ورته پریوزه لږ ئی ذکر وکړه

یو لمحه کښې ډیر آفت او مصیبت راشی
خیر ئی عجبه، اے انسانه! ورته فکر وکړه

الله رحمن په انسانانو همیش رحم کوی
مه آخله بدلے ، د انسانانو ورته صبر وکړه

زۀ خو چې کورمه ژوندون د تباهی نوم دے
لو ئی ګناه ته بهانې ، اے یاره عذر وکړه

په عام احساس باندي داځنی خلق نه پو هیږی
سحؔر شعر ورته و لیکه، تۀ شعر وکړه



## خلق

خلق د روپو او د پیسو پسې روان دے
نمود او نمائش او د بنګلو پسې روان دے

بې د ذی الحجه نه لو ئی اختر خلقو جوړ کړے
لوئې دے که وړوکې، د عهدو پسې روان دے

خلقو د دنیا مصالحه ښبلې ده او تره دی
بې ناوې وادۀ دے هر سحر، د خوشحالو پسې روان دی

سپوره هیځوک نه خوری غوښې وریژی د هر چا لګی
هر سړی ګوشت خور دے، خوراکو پسې روان دے

د زمکې نه اوچت ګرځی مالداره، ورته وګوره
ځان څه جدا ګڼړی نازنخرو پسې روان دے

ښځې دی که نر دی لا بل شانې شرمیدلې دی
دنیا ئی اسره کړے ډیر یدو پسې روان دی

رنګ او ډنګ ئی لګی خلق هم په ډنګ اریان دی
خلق د جامو پسې ، څپلو پسې روان دے

پرواه د دنیا نه کوی ، پرواه په هیچا نه کوی
سحر ادیب ، شاعر دے یار لیدو پسې روان دے

## (قرض)

دا مي نصيحت دي تولو خلقو ته
ښه تري غريبي ده ياره قرض چانه مه اخله
زړه به دي تينګ نه شي بيا غمونو ته
ښه تري نه نيستي ده ،قرض چا نه مه اخله

## رباعي

لوړه درله ښه ده خو قرضونه ياره مه کوه
ښه دي غريبي ده ډير خرچونه ياره مه کوه
ژوند به دي په دارشي چي قرضونه اوخرچونه کړي
خوب کوه بے غمه، هيڅ سوچونه ياره مه کوه

## قطعه

ژوند چي بے مقصده وی نو هيڅ معنیٰ هم نه لری
څوک چي بے عمله وی، نو هيڅ دعویٰ هم نه لری
هسي په عبثو کښي، ژوند تيرول جرم دے
تل به پښېمانه وی، څوک چي قویٰ نه لری
ژوند د ښه عمل سره، ښه تيرول پوهه ده
هسکه غړی ګرځه بيا، هيڅ بلیٰ هم نه لری



## دردونه (غزل)

شعر نه دي دامي درد دے دا دردونه ټول زما دی
کتاب نه دے دا خيالونه دا مي سوچ د انتها دے

زما زړه څمانه وړي دلربا دے
دا دردونه څه زما دی څه خيالونه د رعنا دی

چي به درد زما په زړه شو ما به وليکلو شعر
که غزل دے که دا نور څه دا فکرونه د بل چا دی

ما چي وليدو جانان ډير به خفا ووم
سوزيدم به په اورونو دا اورونه د ژړا دی

عشق زما په هر يو نس نس کښ موجود دے
مينه مينه په هر رګ، کښي احساسونه د وفا دی

زۀ منئين ووم خپل جانان رانه جدا وو
څه فراق مي د جانان وو څه موجونه د هوادی

کله کله چي يوازي خپل جانان به را په ياد شو
ما به ليک اوکړو د شعر،دا يادونه د خوبا دی

هر سبا به د يار طمع، تلوسي وي
نوي نوي درد به راغي الهامونه د سبا دی

ما سحر څکه د ميني کتاب ليک کړو
دا دردونه څه زما دی څه يادونه د ليلا دی

## غزل

ژوند زما تمام شه او ته نه راځې
تور غوندې ماښام شو او ته نه راځې

مینه در کښې نه وه تش کتل دې وو
دا زما انجام شه او ته نه راځې

ستا په جدائې کښې مینه لاړله
بل ځما ګلفام شه او ته نه راځې

ستا دې ډیرې مینې زهٔ شاعر کړمه
دا ته پیام شه او ته نه راځې

بیا دا عمر نه راځی نا وخته شو
نمر راته په بام شه او ته نه راځې

ستا ډیرو دردونو لیونی کړمه
سر زما سرسام شه او ته نه راځې

مینه مې ربښتنې ده زهٔ څه اوکړم
ستا حسن مې دام شه او ته نه راځې

ستا په ډیر فراق کښې سم ستی شومه
دا زما کلام شه او ته نه راځې

مینه چا کښې نشته دې دا وائمه
سحر هسې بدنام شه او ته نه راځې



## نوی خلق

په نوې خلقو کښې زهٔ نه چلیږم
په نوې خلقو باندې نه بلو سیږم
په داسې خلقو کښې اوس نه ځائیږم

زما زړګې خلقه ساده غوندې دے
دا نوې خلق پیچده غوندې دے
زما زړګې څه غم زده غوندې دے
دا ځکه خلقه زهٔ تنها او سیږم
په نوې خلقو کښې زهٔ نه چلیږم

دا نوې خلق بې یقین غوندې
تهذیب تري لاړو څه بے دین غوندې
بناوتیان دی څه رنګینه غوندې
په داسې خلقو کښې زهٔ څه ویریږم
په نوې خلقو کښې زهٔ نه چلیږم

ښهٔ پکښې شته دے خوځه لږ غوندې دی
ډیر بداخلاقه، څه خردګ غوندې دی
څه شریران دی، څه دسګ غوندې دی
حال ئې خراب دے باندې ښهٔ پوهیږم
په نوې خلقو کښې زهٔ نه چلیږم

دنیا تري تښتي دوی په منډه پسي
سم لیوني دي ځي په ځنډه پسي
دا یو خونه دے ښه په غونډه پسي
تل د ربښتیاؤ نه زهٔ نه ښوئیږم
په نوي خلقو کښې زهٔ نه چلیږم

اوسني خلق بې حیا غوندې دي
په بے شرمۍ باندې رضا غوندې دي
مینه ئې نشته بے وفا غوندې دي
داسې خبرو باندې ډیر خُوږیږم

اوسني خلق د پیسو کړی مینه
د خوراکو کړی مینه، او د روپو کړی مینه
دا نوي خلق د بنګلو کړی مینه
ما هر څه اولیدل زهٔ ډیر ګرزیږم
په نوي خلقو کښې زهٔ نه چلیږم

دهوکه دروغ او شرارت ئې خوښ وی
بغض کینه او ښهٔ نفرت ئې خوښ وی
لالچ ، حرص او ښهٔ دولت ئې خوښ وی
داسې ژوندون کښې به زهٔ ښهٔ کړیږم
په نوي خلقو کښې زهٔ نه چلیږم



اوسني خلق د عهدو پسي ځي
نر دی که ښځې د ډګرو پسي ځي
سم لیوني دي سپیلني د نوکرو پسي ځي
ساده ژوندون باندې زهٔ ښهٔ پوهیږم
په نوي خلقو کښې زهٔ نه چلیږم

مینه تري تلې دوی بے میني غوندې
دوی خپل خیالونو کښې څه تلي غوندې
دنیا پرست ، دنیا زېلي غوندې
ښکاره ئې وائیمه، زهٔ نه ویریږم

په نوو خلقو کښې ژوندون ګران دے
د رواجونو په کښې ښهٔ باران دے
سحرؔ! لیک کړه دا د زړهٔ بیان دے
هر څهٔ ته ګورمه زهٔ ښهٔ خوږیږم
په نوي خلقو کښې زهٔ نه چلیږم

## غزل "زړګیه!"

ولې د چا پسې خفه زړګیه!
خمار، خمار، نشه، نشه زړګیه!

چا زخمي کړي، مېن کړي ئې چا
ئې بې قرار، غصه، غصه زړګیه!

چا کښې وفا مینه، یاري خو نهٔ وي
ولې دردیږي اے ساده زړګیه!

د زړهٔ جانان دے لا تر اوسه نشته
دا لاپرواه بے میني خلق، پریږدوه زړګیه!

تا کښې وفا ده، تا کښې مینه، ته جانان غواړې
هسې شعرونه کښې جانان دی یادوه زړګیه!

هسې عاشق، هسې شاعر دے سحّر!
زړهٔ په شعرونو، په بیتونو، ښهٔ کوه زړګیه!



## مزدوره!

مزدوره ---------
مرګ دې ښهٔ دے ---
ددې نه مړښهٔ ئې ته---
د تږوک ډوډۍ په نوم---
دې با ئیلو ژوندون----
تا عزتونه څه کړهٔ----
نه دې ژوندون او کړلو---
نه دې مزه واخسته----
وږی او تږی ئې ته---
نه دې جامې واغوستې---
هر وخت پمن پمن ئې---
هر وختې ستړې ستړې---
خله کښې خندا نه لرې---
او څه ادا نه لرې---
ته ئې مزدور---
چرې مالک به نشې---
ددې نه مرګ دے ښهٔ دے---
چې له دنیا دمه شې---

## اے انسانه!

مندېږ وهی ډيرې، دا ډيرېږی نه
دا دنيا نيمګړې پوره کيږی نه

ځان دې ورته سم ليونی کړې دے
بے سوچه روان پسې، ودريږی نه

عمر دې تول تير شو، او ته مور نه شوې
خيټه غټ کندو دے، دا ډکيږی نه

شپه او ورځ په سوچ د محلونو کښې
دومره جوړوه چې دا ځخيږی نه

دا دنيا ميراته، ارمانی او هم نيمګړې ده
څه حريص انسان، ددې دنيا نه قلاريږی نه

زۀ سحّر به وائيمه، شاعر يمه، احساس لرم
اے سحر وايه، څوک پو هيږی نه



## غزل "بغض"

هسې دښمنی او بغض مه کوه
هسې تربګنی او بغض مه کوه

ځان باندې نظر که، و دنيا وته نظر که
هسې بد نيتی او بغض مه کوه

ولې قهريدلې ئی صفا صفا لږ اوو وايه
هر څه يار فانی، او بغض مه کوه

دا دنيا تيريږې او څه ګيره شوه
مه کوه لوئی او بغض مه کوه

ولې دې زړۀ بند دے کړې کاږه کتل
مه کوه کينه، او بغض مه کوه

دا دسحّر حال دے، ستا په مخه دے
دغه ځان ځانی، او بغض مه کوه

## غزل ﴿اشنا۔۔۔!﴾

هسي په ما تيره شي پرواه رابانديي نهٔ كوي
نه ګوری ته ماته، پام اشنا رابانديي نهٔ كوي

زهٔ در نه اميد كړم چي ته مينه به په ما وكړي
بل اړخ ته مخ كړي ته وفا رابانديي نهٔ كوي

طمع مي وه ستا نه چي زهٔ ستا سره به لاړ شمه
هسي رانه تيره شي پرواه رابانديي نهٔ كوي

ستا په جدائي كښي به ژوندون رابانديي ګران شولو
رحم و كرم نه كړي هيڅ سودا رابانديي نهٔ كوي

ظلم او ستم كړه، زهٔ عادت يم دظلمونو دے
زهٔ په تا شيدا يم ته وفا را بانديي نهٔ كوي

تا ته ډير نزدي شومه، دنيانه شومه لري زهٔ
سٓحر بانديي څهٔ چل شو، دم دوا رابانديي نهٔ كوي



## څني څني خلق

ټول عالم برابر نه دی

قسم قسم انسانان
څني خلق حيوانان

څني دی مسلمانان
څني څني كافران

څني خلق بادشاهان
څني خلق ملنګان

څني خلق مالداران
څني خلق غريبان

څني خلق هو ښياران
څني خلق نادانان

څني خلق افسران
څني خلق چاكران

څني خلق وی نا پوهه
څني خلق دا نايان

ځني خلق دښمنان
ځني خلق وی دوستان

ځني خلق شريفان
ځني خلق شريران

ځني خلق نرم نرم
ځني خلق سنګ دلان

ځني خلق وی بخت جان
ځني خلق محرومان

ځني خلق وی تک تور
ځني خلق سپين دهان

ځني خلق تنګ نظره
ځني خلق بې پايان

ځني ځني عالمان
ځني خلق جاهلان

ځني خلق کنجوسان
ځني خلق وی سخيان



ځني خلق وی چپ چپ
ځني خلق وی ګويان

ځني خلق عادلان
ځني خلق ظالمان

ځني خلق بدزبان
ځني خلق خوږزبان

ځني خلق رو غ صورته
ځني خلق بيماران

ځني خلق مالکان
ځني خلق نوکران

ځني خلق وی پاکان
ځني خلق ناپاکان

ځني خلق چالاکان
ځني خلق مجذوبان

ځني خلق مړاوی مړاوی
ځني خلق خوش رويان

ځـنـي خـلـق بـا تـوران
ځـنـي خـلـق ګيـدړان

ځـنـي خـلـق وي مستـان
ځـنـي خـلـق نيستـګـاران

ځـنـي خـلـق شـادوګـان
ځـنـي خـلـق ميـلـوګـان

ځـنـي خـلـق شـرمـخـان
ځـنـي خـلـق بـلاګـان

ځـنـي خـلـق وي بـے سوچـه
ځـنـي وي مـفـکـران

ځـنـي خـلـق وي بـد مـخـه
ځـنـي وي ښـکـلـی خـوبـان

ځـنـي ځـنـي کـوتـی لال
ځـنـي لـعـل و بـد خشـان

ځـنـي وي ظـاهـر انسـان
حـقيـقـت کـښې وي سـګـان



ځـنـي خـلـق لـکـه شـمـع
ځـنـي خـلـق پتـنـګـان

ځـنـي ځـنـي عـاشـقـان
ځـنـي ځـنـي مـحـبـوبـان

ځـنـي خـلـق وي بـد ذاتـه
ځـنـي وي ډيـر اصيـلان

ټـول عـالـم بـرابـر نـه دے
څـه پـه ميـځ کـښې بـل بـل شـان

دا د لـوئـی الـلـه قـدرت دے
چـې تـول کـړې ئـی جهـان

ټول د چـا څـه خوښ خو نـۀ وی
خـوښ چـې وی نـو ښـهٔ انسـان



## غزل

### (یوه ښکلي جینۍ) ریما ته---

### چې ما ولیدله!

څومره ښکلی ته پیدا ئی، څومره ښکلي دے ښکلا ده
څومره ښکلي په ما لګي، څومره ښکلي ستا ادا ده

اوږد اوږد دے وجود دے ، سمه ښکلي راته ښکاري
څومره ښکلی دا ستا مخ دے،څومره ښکلي دے خندا ده

ستا آزاده ښکلي طبع، ستا آزاد ښکلي خیالونه
ستا ډیر حسن مې زړۀ وړي، ستاسایه ښکلي په ماده

په سیرت ئی څومره ښکلي ، په صورت هم ډیره ښکلي
یا یو حوره د جنت ئی، یا زما د زړۀ هواده

ستا خوږې خوږې خبرے، ستا د مینې اندازونه
عجیبه په ما لګیږی ، زۀ وئیم حوره د دنیا ده



فرښتو هسي په لاسو، جوړه کړې
څه ښکلا د تا په مخه، څه ښکلا د تا په شا ده

ستا وجود وته پسخیږم ستا وجود ته حیرانیږم
دا غزل چې تري نه جوړشه، درته وایم دا ریما ده

ما لیدلی دی ډیر خلق، خلق دومره ښکلی نۀ وی
زړګي وړي د سترګو رپ کښې، څه حسینه محبوبا ده

زۀ افسوس کوم چې لرے، ته زمانه، او زۀ ستا نه
په اشعاردي یادومه، دا زما د زړۀ وفا ده

زۀ شاعر یمه ، نازک یم ، زر خوږیږم
سحؔر ډیر خوبان لیدلی، دا د هر ښکلی سیوا ده

## غزل

هسي ليوني يم، بې وفا نه وفا غواړم
هسي خطا کيږم نا اشنا نه اشنا غواړم

مينه ددي خلقو ددي زړونو نه وتلي ده
څوک هم رضا نه شو، زهٔ د چا نه رضا غواړم

هسي د رسمونو مينه شته دے، دي کښې شک نشته
هر څوک د وخت څوي دے، نو بيا زهٔ ئې له چا غواړم

ما د مينې ډک زړګي، هر چا ته وربخښلي وو
هيڅ په پته پوه نشوم، بيا هم، ليلا غواړم

مينه او اخلاص د پاکو زړونو ښکلي نور دے
زړونو کښې تيري دی، ولې نُور د خوبا غواړم

نادانه سحّر نهٔ دے، ښهٔ داناؤ کښې حساب دے
ولې مينه مينه، اوبيا ولې وفا غواړم



## غزل "اوّل"

اوّل که ما ليدلي وي نو ښهٔ به وه
مخکښې که تر ما رارسيدلي وي نو ښهٔ به وه

اوس ګلي نا وخته دے بوډا يمه
مخکښې زمانو کښې که راغلي وے نو ښهٔ به وه

کله چې هلک وومه ته کوم ځائی وې
مخکښې که دلبرې يو ځائې شوې وې نو ښهٔ به وه

ډيرې زمانې راباندې تيرې، څهٔ کوې نشم
مخکښې که يو بل ته مو، کتلي وی نو ښهٔ به وه

اوس مې تش ارمان، او افسوس زړهٔ کښې دے
مخکښې که زما سره، ته تلي وے نو ښهٔ به وه

ته به وے زما، زهٔ به ستا شوے ووم
ما که ته خپل کړې وے نو ښهٔ به وه

ستا سره مې مينه، افسوسونه، او دردونه شو
مخکښې که دې مخ را ګرځولي وې، نو ښهٔ به وه

ستا د ښکلې ميني نه د غزل شعرونه جوړ شولو
مخکښې که سحّرا ميئن شوې وې نو ښهٔ به وه

## غزل (زوُر)

دنیا ښکلي شوه ته زوُر شوي
دنیا وړی شوه ته مور شوي

خلق اوس دنیا ته راغلل
زړهٔ دي ستړي شو ته سوړ شوي

خلق اوس مستی مستی که
ته نا جوړه ئی نهٔ جوړ شوي

خلقو اوس کورونه جوړ کړه
ستاتکړي، دوه دری د پوُر شوي

خلق بره بره درومی ---
ته شکته ځي نچوړ شوي

خلق ټول، خوشحال خوشحاله
ته پریشانه شوي نا جوړ شوي

دنیا خلق لیونی کړهٔ
ته فقیر شولي زړهٔ موړ شوي

خلق ټول شو ښکلی ښکلی
اے سحّر ته جنجور شوي



## آزاد نظم

(راته یاد شی)

زۀ سبا چي راروان شم
نو را یاده راته تۀ شي---
ستا سوچونه ته زۀ لاړ شم
ستا یادونو ته زۀ لاړ شم
ستا راتلل راته رایاد شی---
ستا کتل راته را یاد شی---
زړۀ مي ستا پسي خفه شي---
زړۀ مي ستا پسي ګرځیږی
کله یوته ----
کله بل ته---
پکښي تا زهٔ لټومه---
تا زۀ ګورمه ته نه ئی---
تصور کښ دے زۀ لاړ شم
ستا وجود راته رایاد شی---
ستا وختونه راته یاد شی---
ستا د منیی اندازاونه---

پسخیدل راته را یاد شي---

خو زهٔ هسي لوګي کیږم---

ستا دردونو کښي اوسیږم---

ستا خیالونه کښي اوسیږم ---

د ډیر درده شعر جوړ کړم---

ستا ارمان نه شعر جوړ کړم---

ستا فراق مي شاعري شوه---

ستا سودا مي شاعري شوه---

خو یو ځائی کښې هم ته نه ئي --

زما ذهن کښي اوسیږی---

مینه مینه وفا نشته---

سحر! مه یادوه خلق---

سحر! مه کوه یادونه ---

سحر! مه کوه دردونه---

داسي ښهٔ ئي---

داسي ښهٔ ئي---



## عقلونه

د مطلب دي څو خبري
زهٔ به څهٔ وائیمه تا ته

دا چي غلي غلي ګرځم
بصیرت دي عطا ما ته

چي بے ځائي څوک وئیږی
دا نادانه دے د هر چا ته

هیمش چپه خُله اوسیږه
دا ښهٔ وائیم دلربا ته

چي خبري کوی ډیري
بي عقلی ئی راځی خواته

دا رسمونه بناوټ دے
حقیقت نه دے ډیر شاته

عقل مند همیشه چپ وی
دا معلومه ده دنیا ته

په آسمان زمکه پوهیږی
ډیر تیز فهمه وی سبا ته

د مطلب خبري ښه وی
بی مطلبه ځی هوا ته

ښه سکون به دی ملګري
ښه تکره به ئی هر چا ته

د رسمی دنیا نه لر شه
بهار نه راځی بیدیا ته

سوچ یو ښه ښکلي دنیا ده
پري به رسي منتها ته

خاموشی ښکلی حکمت دے
دا په شعر ادب تا ته

خپل جانان پري هم موندي شي
انسان رسی پري الله ته

ملغلري دی لړ پوه شه
سحّر وائی هر بینا ته



## ښُکلو ته!

ښکلی دی ښُکلا، خپله سنهبال کړی
زړۀ ئي راله اوسیزه ، ځيګر ئي راله اوسیزۀ

جیب کښي دي سنهبال کړی، خپل جمال یاره!
ځیګر ئي راله اوسیزه، ټټر ئي راله اوسیزۀ

نه راځی مي خوا له خلقه ړوند شومه دیدن پسي
بصر ئی راله اوسیزۀ، نظر ئي راله اوسیزۀ

زړۀ ځما رنځوره ،طبیب نشته دے
کپر ئي راله اوسیزۀ، پیکر ئی راله اوسیزۀ

مینه مي یقین دے، زۀ پري ځمه هر یو لور ته
سفر ئی راله اوسیزۀ، وزر ئی راله اوسیزۀ

ریبار مي ور لیږلي وو، د یار خبر د یاره
خبر ئی راله اوسیزۀ، بشر راله اوسیزۀ

پاتي په تیرو کښي شوم، الله دي مخکښي خیر کړی
ځیګر ئی راله اوسیزۀ، سحّر ئی راله اوسیزۀ

## غزل (نه راځي)

زړۀ ځما خوږيږي او ته نۀ راځي
اوښکې مې بهيږي او ته نۀ راځي

ته چې داسې لاړې زۀ به څه کووم
زړۀ زما ژړيږي او ته نۀ راځي

ستا په بيلتانه کښې شوم ذرې ذرې
زړۀ زما درديږي او ته نۀ راځي

ستا له غمه ياره ليونی به شم
سر په ما تاويږي او تۀ نۀ راځي

تۀ زما د حاله څۀ خبره ئې---
څۀ په ما تيريږي اوته نهٔ راځي

ستا ښکلې ادا زما هيريږي نه
هر څۀ مې ياديږي او تۀ نۀ راځي

ګورې که بيا راشی دا بهار ځما
ګل زما رژيږي او تۀ نۀ راځي



ستا سره مې، مينه په رښتنې ده
وخت مې نۀ تيريږي او تۀ نۀ راځي

بيماريمه ناروغه يم د دتا پسې
زړۀ زما دوريږي او تۀ نۀ راځي

کله کله هير دې کړم چې هير مې شې
زړهٔ مې نه صبريږي او تۀ نۀ راځي

ډيرې مودې وشولې، چې تللې ئې
زړۀ مې خفه کيږي، او تۀ نۀ راځي

ستا په ډيره مينه کښې شاعر شومه
شعر مې خوريږي او تۀ نۀ راځي

داسې راته ښکاری بې وفا وې تۀ
ظلم دې ډيريږي او تۀ نۀ راځي

چرته په خطا کښې هم رانغلې تۀ
څۀ په ما تيريږي او ته نه راځي

ستا په ډيره مينه کښې تنها شومه
زړۀ زما ويريږي او ته نهٔ راځي

خلق مې مجنون او سودائی بولی
رنځ زما زیاتیږی او ته نه راځې

نن مې زندګی ده، سبا نهٔ به وی
وخت خو نه اودریږی او تهٔ نهٔ راځې

هله به ته راشې، چې زهٔ نهٔ یمه
ژوند زما تیریږی، او تهٔ نهٔ راځې

ستا په مینه مینه، لیونې به شم
هر څه مې لوټیږی او تهٔ نهٔ راځې

راغې، خزان راغې، زهٔ ئې وچ کړمه
رنګ زما زیړیږی او تهٔ نهٔ راځې

ډکه دنیاګې کښې زهٔ یوازې یم
ټول په ما پوهیږی، او تهٔ نهٔ راځې

راشه خدائی د پاره بیا به نهٔ ئیمه
روح زما نه خیژی او تهٔ نهٔ راځې

ستا په مینه ،زهٔ سحر لوګې شومه
تن زما سوزیږی، او تهٔ نهٔ راځې



## غزل

هسې په خیالونو په سوچونو دې وختونه تیروم
هسې لیونی یم په فکرونو دې وختونه تیروم

هسې دې مئین کړم، یاره هسې دې لوګې کړمه
سوزم په اورونو ، په اورونو دې وختونه تیروم

کله چې رایاد شې په زړګې توره تیاره مې شی
هسې تصور کښې، په یادونو دې وختونه تیروم

ستا په جدائۍ عجیبه درد زما په زړهٔ دے
نه راځې تهٔ خواله، په دردونو دې وختونه تیروم

په ویښه مې هم ته ئې، په خوبونو کښې هم ته ئې
هسې په خوبونو، په آهونو دې وختونه تیروم

ډیره راته ګرانه، چې په خوا کښې مې ته نه ئې
زړهٔ زما خوږیږی په زخمونو دې وختونه تیروم

ښه ده چې شاعر يمه، زړۀ سوړ په شاعرۍ کړمه
زړۀ قلاروم په شعرونو دې وختونه تيروم

سم به ليونی ووم، که جانانه شاعر نه وې
ځان له شمه کښينم، په ليکونو دې وختونه تيروم

ځنګه دستورونه دی چې حال وئيلی نه شم
ځنګه ښکلې مينه، په رسمونو دې وختونه تيروم

را دې کړو فراق، او څه دې راکړه ارمانونه
وو ينه سَحر دے، په غمونو دې وختونه تيروم



## کاټلنګ ته!

د تانه مې زړۀ نه کيږی خوشحاله درکښې اوسم
راکاږې خلق ځان ته، بې مجاله درکښې اوسم

ستا مسته مسته زمکه، فضاګانې دې رنګينې
ښائسته ښائسته دې خلق، زۀ دلداره درکښې اوسم

ستا خلق زنده دل دی، مستانه دی، ښکلی ښکلی
هر کس جانان جانان دے، بې وصاله درکښې اوسم

هر وخت تا کښې اختر وی، ستا بے غمه شان دنيا ده
هر اړخ کښې غوغا وی، زۀ بے تاله درکښې اوسم

د سوات په څنګ کښې پروت ئې، هم د سوات په شانې لګې
په غيږ کښې دی ګلونه، زۀ بې حاله درکښې اوسم

اوبه دې مستې مستې، د صحت د پاره ښهٔ دی
خوشحاله دې ټول خلق زهٔ خوشحاله درکښې اوسم

تاریخ لرې ښهٔ زوړ، رومانی د تا دنیا ده
د مینې نه تهٔ ډکه، زهٔ سو کاله درکښې اوسم

تیلی درېسې نه بلوی دلته کښې څوک شاته
یاری ده مینه مینه، زهٔ بې خیاله درکښې اوسم

یادونه مې دا څو کرښې رقم کړهٔ چې دا پاتې
شاعر یمه سحَریم، زهٔ لیکواله درکښې اوسم





## وصیت

په تربُورانو کښې مې مه ښخوی
زما دې قبر دوی نهٔ ډېډې ته وی

په ژوندانه ئې ښهٔ کتلی نه دی
زما دې روح هم دوې نه ډېډې ته وی

چې زهٔ ژوندې وومه نو سپک ئې کتل
څما دې څلې دوې نه ډېډې ته وی

کینه او بغض ئې، ټول وخت کړې دے
په صفا زړهٔ ئې هیڅ وئیلي نه دی

زما دې قبر دوی نه ډېډې ته وی
زما دې روح هم دوې نه ډېډې ته وی



## غزل

کردار ځان کښې پیدا که، په ګفتار با ندي څه نۀ کیږي
ژبه دے کړه بنده، په چغار باندي څه نۀ کیږی

د لاسو پښو نه کار واخله، په خُله باندي څه نۀ کیږی
کښینه په ډهیری باندي، په شمار باندي څۀ نۀ کیږی

خپل منزل معلوم که درنه ورک نشی
بے منزله مه ځه په رفتار باندي څه نۀ کیږی

ګرانه عاشقی ده، سوزول کوی
خلق بے پرواه وی، په دلدار باندي څۀ نۀ کیږی

کله چې پوره شی، په هوا به ځی
نه وی چې پوره دے، په بیمار باندي څۀ نۀ کیږی

وګورئ سحَر ته غلي غلي دے ښۀ خوی لری
زړۀ ساتی د خلقو، په آزار باندي څۀ نۀ کیږی



## جانانه!

ښومره ښکلې ئی جانانه!
ښومره ښکلې دے خندا ده
ښومره ښکلې ښکلې مخ دے
ښکلي ښکلې دي خبري---
د خندا نه ډکې سترګې---
مخ دے تږوله مینه مینه---
هر اندام دے مزیداره---
سر تا پا یه ښکلې ښکلې ---
ښکلې ښکلې دي خبري---
دی خوږې لکه شکري ---
ادا ګانې دے بل شانې ---
ویښته لا دي بل بل شانې---
لکه اوښه دنګه غاړه---
مخه لا دي حسن داره---
شاته لا عجیبه ښکلې ---
سم څه چل راباندې کیږي---

زۀ بې خوده شمه تاته---

په خپل ځان زۀ نه پو هيږم---

څو مره ښکلې ئې جانانه!

زرۀ مې وائې ---

چې په غيږه کښې دې واخلم --

او دې ځان ته رانژدې کړم---

خو ستا مينه مې ارمان شي

څو مره ښکلې ئې جانانه---

څو مره لرې ئې جانانه ---

زۀ تر تا رسيدې نه شم ---

څو مره لرې ئې جانانه ---





## خپل تصوير ته ولاړ

لا ړلـې بـوډا شـولـې ښـکلا د تـا نـه څـۀ شـولـه
مـخ دې کـونـجې کـونجې شه خندا د تانه څۀ شوله

ښـکلـې ښـکلـې زلفې دې نازک نازک وجود دې وو
ښـکلـې ښـکلـې سترگـې دې، وفا د تا نـه څـۀ شولـه

تـور ويښتـه دې سپيـن شـولـو، دا څنگـه شـوې
سختـو،سـختـو،سختـو کښـې، جفا د تا نه څۀ شوله

هـر وختـې خـفـه ئـې، پـه خپـل حـال بـانـدې
هـر څـه دې کـږوږ شـولـو، ادا د تـا نـه څـۀ شوله

وچ د تـا وجـود شـولـو ، بـا غ بهـار دے ورک شولو
لاسـو کښـې څـه نشتـه دے ، هوا د تا نـه څۀ شوله

سحَـر تـه ورکيـږي! او ورکيـږي درنـه هـر څـه تول
سبـا د تـانـه څـه شـولـو، بيـگـا د تا نـه څـه شولـه



## جانانه!

ځومره ښکلي ئي جانانه---!
ځومره ښکلي ستا خبري
ځومره ښکلي ستا خندا ده
ځومره ښکلي ستا ادا ده
ځومره ښکلي دا ستا مخ دے
هر عضو دي ښکلي ښکلي---
ګير چا پيره ټول وجود دے
جوړي خاوري د جنت ئې
يوه حوره د جنت ئي---
چي خوشبو هم درنه خيژي---
ستا پستي پستي خبري
ښکلي ښکلي دنګه غاړه
ډکي سترګي د خندا نه ---
مخکښي ښکلي ښکلي ښکاري---
شاته ښکلي ښکلي ښکاري ---
زۀ ستا حسن ته حيرانه ---
سم څه چل راباندي کيږي



زۀ بي خوده شمه تا ته---
په خپل ځان هم نۀ پو هيږم
زړۀ مي وائي چي زما شوي---
او په غيږه کښي واخلم
او د ځان سره دي بو ځم
خو ستا مينه مي ارمان شوه
ځومره ښکلي ئې جانانه
جوړي حوره د جنت ئې
پاکه خاوره د جنت ئي
ښکلي ښکلي ئي جانانه



## هسې !

نه مې څهٔ حاصل کړلهٔ
نه مې څوک څهٔ خپل کړلهٔ

هسې ستړي ستړي شوم
ما هسې ژړل کړلهٔ

يو انسان خپليږی نه
ما دلته ليدل کړلهٔ

ټول دلته د وخت ياران
وخت راته ښودل کړلهٔ

ټول دی مطلبی ياران
زړهٔ مې کړيدل کړلهٔ

هسې خوب و خيال وو يار
ما به څنګيدل کړلهٔ



يو هم پکښې او نشه
ما هسې کرل کړلهٔ

څوک د دوستې نشته دے
زړهٔ هسې چاودل کړلهٔ

څوک خبره نه آوری
هسې ما وئيل کړلهٔ

زړهٔ مې راډک شوي وو
څکه مې دا کښل کړلهٔ

وليدهٔ مې ډير هر څه
ښه مې دا ليکل کړلهٔ

دي دنيا کښې نه وی چې
زړهٔ مې درديدل کړلهٔ

څه راته حاصل نه شو
سحَر هسې راتلل کړلهٔ

## یو خراب پرنسپل ته ---- چې ریټائر شو

چې په عهده به دې لوئی کړله، عهده دې څهٔ شوه
تا به نازونه کړل، لوئی کړله، چرچه دې څهٔ شوه

ګریوان کښې و ګوره، چې څومره درد ولې دی تا
څومره دهوکه منافقت دې کړه، دهوکه دې څهٔ شوه

ته غریبانو، مختاجانو ته، به نر پهلوان
د مالدارانو، رئیسانو سره، بل شان طریقه دې څهٔ شوه

د ډیره کبره همیشه، هر څوک دې سپک ګنړلی
چې به دې سُر کړلو، ستار،نن، ترانه دې څهٔ شوه

ستا په دماغو، او په زړهٔ دافسرئ سُرونه
تل غړیده به، اوریدهٔ به، افسانه دې څهٔ شوه

د سکول بادشاه وې د زمری په شانې
چې پکښې ناست به په غرور وې، اشیانه دې څهٔ شوه



تا به خپل خان ته، افلاطون او ارسطو وئیلو
هغه دانش، او حکمتونه دُردانه دې څهٔ شوه

چې چا به یو څه ووې، تا به یاره بل څهٔ ووې!
دروغ دروغ به دې کړه یاره، بهانه دې څهٔ شوه

سوچ وکړه بیا شولې، بې وسې او بې توانه انسان
ژوندن دې با ئیللو، هر څه لاړهٔ نشه دې څهٔ شوه

ته څه قابل وې؟ د پښتو مضمون دې نه شو لیکی
څهٔ په دهوکو او دړاکو، ژبه خوږه دې څهٔ شوه

څهٔ دې تري جوړنهٔ کړه، چې تا به جوړول څیزونه
منزل دې څه شو زما یاره، نشانه دې څهٔ شوه

یو خوب و خیال وو، حقیقت باندې ته نهٔ پوهیدې
سحَر خماروو ستا لیدلې، اوس لشه دې څهٔ شوه



## جانان-----

زۀ د جـــانـــان نـــه لـــري لـــري بنـــۀ يـم
کـــه نـــزدې کيـــږمـــه دنيـــا ورانيـــږی

د عشـق مـنـزل کـښ ستـړې ستـړې بنـۀ يم
کـــه ورسيـــږمـــه سبـــا ورانيـــږی

زمـا جـانـان څـمـا بې شـانـه خوبښ دے
کـــه ورجـختيـــږم مـحبـوبـا ورانيـــږی

تـنـدې اخستـــې يـم، خـو تـږی بنـــۀ يـم
کـــه اوبـــه څښـمـــه، بيـا رضـا ورانيـږی

پـه مـا خوږو پـه شـانې لګې ياره څۀ اوکړمـه!
کـــه خـوارۀ خـورمـــه، نـو حيـا ورانيـږی

زۀ ستـا پـــه مينـــه ، شـعـــر، شعـر شومـه
چـې مينـه نـه وی، نو د شعر مې دنيا ورانيږی



مينـــه د لـــرې نـــه خـونـدونـــه کـوی
کـــه ګـل شـوکـومـــه، نـو هـوا ورانيـــږی

ګلـونـه مـه شوکوه، دا ښکلې نازکه غوندې
کـــه رژوې ئـــې، مينـــه بيـــا ورانيـــږی

هســې پسـخيـــږم د جـــانـــان حُسن تــه
مينـــــه ادب، جـــدا ،جـــدا ورانيــــږی

پـــاکـــه ده مينـــه، لـکـــه پـاکـــه رنـړا
بيـــا مـــې هـم مينـــه، هـم وفـــا ورانيـــږی

سـحـَـر داســې پـــه فـراق، کښــې بنـــۀ ئــې
جـــانـــانـــه بيـــا زمـــا او ستـــا ورانيـــږی



## اے موري

تا چي کرلی هغه ټول ګلونه مړاوي شولو
تا چي غټ کړی هغه هر څۀ پانړي پانړي شولو

باغ دي تالا شو چي ته لاړلي د مرګه سره
مونږ بوډاګان شولو تس نس شو، زاړي زاړي شولو

اے ستا د مخه پوري مخ وو، اوس څوک نشته زمونږ
په ډکه خُله ئی راګوزار کړو، لاړي لاړي شولو

ما لکه ګل غوندي ښکلا، او خوشبوئی او نۀ کړه
هسئ واښۀ ، هسئ ګياه، هسئ ورخاړي شولو

هر وخت افسوس کړمه، چي نه ئی موري---!
سحّر تنها تنهاشو پاتي، غاړي غاړي شولو





## ❁اے ښځي---!❁

د شا نه ښکلي ښکاري ---
د ادا نه ښکلي ښکاري---
په تلو کښي ښکلي ښکاري---
په راتلو کښي ښکلي ښکاري
دا مخ دي څنګه ښکلي---
دا بدن دي ښکلي ښکلي---
نازک نازک بدن دي دے
یو دم کښې زړګي یو سي---
ستا پښو لاندي جنت دے
جوړ ختې د جنت ئي---
جوړ حُوره د جنت ئي---
ستا هوا د جنتونو ---
ستا اعضاء د جنتونو---
د حورو ښکلي ذات نه
داستا بدن جوړ شوي---
انداز دي ښکلي ښکلي ---
ته مینه، مینه، مینه---!

ته مورئي او ته خورئي---
ته ترورئي او ته يورئي---
ته نيا ئي ته نمسۍ ئي---
رضا رضا په تا کښي---
وفا وفا په تا کښي---
جفا جفا په تا کښي---
ستا مينه مزيداره---
ياري دے وفا داره---
قربان دي خپل بدن کړي
هم ځار دي خپل وطن کړي
درد منده ئي ته ډيره---
وارۀ بچي راغټ کړي
د دوی نه سرې جوړ کړي---
ځوانې کړي ورته خاوري
زړګي کړي ورته خاوري
اے ښځي څومره ښکلي
ته ښکلي ښکلي ښکاري
يا ماته ښکلي ښکاري



## «غزل»

څوک د يارۍ نشته دے د چا سره ياري اوکړم
ښکلي بے وفا غوندي، ولي د لجوئي اوکړم

دومره زمانو کښې، ما ته هيڅوک را نزدي نه شو
هسې توقې لوبې دی دچا زۀ دلداري اوکړم

هسې ليونې به وی، هسې به خپل زړۀ چوی
مينه مينه نشته د ے دچا زۀ دلبری اوکړم

ډيره دلبری مې کړه، ډيره مې ياری اوکړه
څوک مې هم يارنه کړلو، د چا زۀ اشنائی اوکړم

وګوری ما لدارو ته، څه رنګه غرور کوی
غريب سره ئې نه لګی، ولي پرې خواری اوکړم

هيڅ هم نه خپليږی څوک، ډيرمې ازمائيلي دی
پس له دې به څۀ اوکړم، سحّر که زۀ زارې اوکړم



## ﴿غزل﴾

زۀ ستا په مینه په وفا باندې غزل لیکمه
ستا په ښکلا ، ستا په خندا باندې غزل لیکمه

د مینې ډکه ، پریوانه ،آزاد خیاله غونډې
ښکلې ادا ستا په، ادا باندې غزل لیکمه

زۀ دې شاعر کړمه درد مند دې کړمه خُوږدې کړمه
کله وفا کله جفا، زۀ په لیلا باندې غزل لیکمه

ستا ښکلا څنګه ده، جانانه تا ته څه پته ده
په ښکلې مخ ښکلې بدن، ستاپه اعضاء باندې غزل لیکمه

خوږه دې ژبه، څۀ خوږې خوږې خبرې کوې
زۀ ستا په شونډو، په صدا باندې غزل لیکمه

په ډیر فراق په جدائې، دے سوزیدلې یمه
څۀ په کرم څۀ په ستم، زۀ محبوبا باندې غزل لیکمه

سحّر دے ټول عمر عادت،ستاپه ستم ستړې شو
ستا په لوی، ستا په هوا باندې غزل لیکمه



## ﴿دردونو کښې﴾

ستا په خیالونو په فکرونو کښې زۀ اوسم، رانه نۀ هیریږې
ستا په دردونو په غمونو کښې زۀ اوسم، رانه نۀ هیریږې

خلق د مینې نا خبره، په دنیا پسې ځې
زۀ لیونې شوم احساسونوکښې زۀ اوسم، رانه نۀ هیریږې

زما نه ورکه شوې، بیا رانغلې ته په کومه لارې
ستا په زړګې کښې، په رګونو کښې زۀ اوسم، رانه نۀ هیریږې

ستا نه جدا شوم په بیلتون، کښې مې عمرونه تیر شو
په طمعو طمعو په یادونو کښې، زۀ اوسم رانه نۀ هیریږې

ستا د وفا ستا د جفا، حالونه نه ووائیمه
د زړۀ دنیا کښې، په رازونو کښې زۀ اوسم، رانه نۀ هیریږې

هغه کتل، هغه راتلل، هغه ستا مینه څه شوه
ښکلې وختونه رایادیږې، په وختونو کښې زۀ اوسم، رانه نۀ هیریږې

فقیر، ملنګ نه، د سحّر نه دے شاعر جوړ کړو
د زړۀ کورونو محلونو کښې، زۀ اوسم، رانه نۀ هیریږې

## «غزل»

که تا نه وي را کتلي دا به ښه وه
که ما نه وي ته ليدلي دا به ښه وه

چي مي اوليدلي زړهٔ دي رانه يوړو
که زهٔ ستا سره، په لاره نه وي تلي دا به ښه وه

ستا خوږو خوږو کتلو ليوني کړم---
که زهٔ نه وي درديدلي دا به ښه وه

پس له هغي نه،زهٔ تا پسي خفه يم
که ما نه وي، درکتلي دا به ښه وه

ستا په مينه ،په زړګی باندي زهٔ پوه ووم
که زهٔ نه وي پوهيدلي، دا به ښه وه

په ټول عمر کښي مايو جانان او نهٔ موند
که تا مينه رابخښلي دا به ښه وه



تا هم زهٔ لکه د نورو هسئ پريښوم
که تا لاس ماله راکړي دا به ښه وه

اوس د تا پسي سودا کوم، خفه يم
ته که خواله مي راغلي دا به ښه وه

ستا په يادو کښې بے خوده شاني پريوځم
هغه ساعت که پاګل شوي دا به ښه وه

اوس زهٔ ستا په جدائي غزلي وايم
که شاعر نه وي سحر، نهٔ ئي ليکلي دا به ښه وه

## ﴿خپل پردی﴾

په خپلو کښې نفرت وی، په پردو کښې مینه ډیره
د خپلو څوک خوښ نه وی، درته وائیمه په زوره

پردی دې احترام کړی، خپلو خلقو ته به سپک ئې
د خلقو پردی لګی، د رب دې حکمت ته ګوره

پردی خلق خواږهٔ وی، ټول پردی څیزونه ښهٔ وی
لږ وګرځه ته ووینه، ته ګوره لور په لوره

ازغو په شان تراخهٔ شی، کله خوند کوی د زهرو
دا خپل اکثر دښمن وی، غوږ ښهٔ اونیسه اے روره

پردی عالم خواږهٔ وی، لکه ګوړو غوندې لګی
سحّر زهٔ دا غزل کړم، درته ښائیمه بیا نوره

پردو کښې مینه مینه، ټول پردی وفا وفا وی
دروغ نه دی رښتیا دی، ما لیدلي دی له کوره





## خفه زړګي له!

زما خفه زړګي له راشه چې قرار اومومي
ډیرې مودې نه پرې خزان دې، چې بهار اومومي

ډیرې مودو نه خلقه تلې دے، زما نه جانان
زړهٔ پریشانه پریشانه، چې خپل یار اومومي

هر وختې تازهٔ یادوم جانانه چرته نه ئې
زړهٔ بے قراره بے قراره چې دلدار اومومي

ښکلا د زړهٔ، ښکلا د ژوند مې ته وے
زړهٔ مې حیرانه، پریشانه، چې سنګار اومومي

ګیراو چاپیره، نفرتونه دی، نیتونه خراب
زما درد مند زړګي له راشه، چې لږ پیار اومومي

چې رانه تلې، ستا خیالونه ستا شعرونه جوړولي نشم
وفا،وفا شه چې سحّر دے ښهٔ اشعار اومومي



## کله وی او کله نه وی

نن مې اولیده په لاره
د زړګي ښکلي دلداره

بیا مې زوړ زخم تازه شی
چې زهٔ وینم ګل زاره

کله راشی کله ورکه-----
مودو پس شی نموداره

کله ډیر اوږد خزان کړی
کله زر راشي بهاره

هیڅ څه غږ را ته و نهٔ کړی
عجیبه غوندې خوداره

کله وی او کله نه وی
بیا مې اوښکې وهی دهاره



تا زما نه زړګي وړي
زهٔ تر عمره یم بیماره

عجیبه ښکلي پیداده
ښکلي ښکلي مزیداره

دا مې خیال د زړګي نه کړی
دا د زړهٔ څنګه مالیاره

دا چې اوونیم خفه شم
زړهٔ مې سرشی په اشعاره

زهٔ سوزیږم شاعری کړم
په ما غم همه بسیاره

زړهٔ مې ټول عمر خفه وی
بیا نشه نشه خماره

اے سحرؔ دا قسمت دے
بې وصاله ئې بے یاره

## بابا

مخ مي ګونجي شو بوډا رانه جوړ شوي دے
ږیره مي شوه سپينه، سم بوډا رانه جوړ شوي دے

لاړله ځواني زما نه، ټوله هوا يو ړله
لاړله ښکلا زما، دادا رانه جوړ شوے دے

زۀ پرون هلک وم، په سبا سبا کښي زوړ شومه
سم په لاره تلي نه شم، کا کا رانه جوړ شوي دے

څوک راته بابا وائي، او څوک راته ماما وائي
ځان ته خفه کيږمه، ماما رانه جوړ شوي دے

لاړله ځواني زما، د حسن وار مي تير شولو
سحّر که ښه شاعر شو څه ؟ ادنا رانه جوړ شوي دے



## خدايه !

خدايه څنګه دے مخلوق دے، تش د خيټي ډکيدۀ ئي لګی
غټه نمری ډيره ښودی، او مړيدۀ ئي لګی

پښوا د ختمو کور کی وو، څه پرواه به نه وه
اوس په بنګلو کښي، په ښاريو کښي اوسيدۀ ئي لګی

پښوا په لوږه، غريبی، د چا څه کار به نه وو
اوس بلاګان دی، هم تراخه، او هم خوږۀ ئي لګی

پښوا به ټول خلق پياده وو، څه سيالی به نه وه
اوس په هوا ځی د موټرو، تلۀ راتلۀ ئي لګی

دومره حرص نه وو پښوا، څومره حرص چي اوس دے
ساړۀ ساړۀ وو صبر ناکه، اوس تاودۀ ئي لګی

دومره فيشن او رنګ و شرنګ، به هيچا نه کولو
اوس قسم قسم لباسونه، ګډيدۀ ئي لګی

دومره چلونه، به چا نه کول ساده خلق وو
اوس ليونی دی سپيلنی دی، لوګيدۀ ئي لګی

پښوا به ټول خلق غريب وو، څۀ پروا به نه وه
درنی درنی کوی خبري، درنيدۀ ئي لګی

قسم په رب که، په پيسه باندے مي لګی دنيا
سحر فقير، ملنګ انسان دے، دي نه تلۀ ئي لګی

## خپل جانان ته!

ستا ښائسته ښائسته بدن دے
ستا ذره ذره ديدن دے

هر عضو دے ښکلي ښکلي
خوشبوداره دے چمن دے

ماته خپل ديدن لږراکه
ستا ديدار په ډير ثمن دے

مخ دے پټ په شل شالونو
بيا هم ستا عجب حُسن دے

دايو وخت چي ستا ښکلا ده
دي نه پس ژوندون پمن دے

مخ ښکاره کړه خپل سحّر ته
ژوند سبا دے او يا نن دے





## اے غريبي!

غريبي څه دے اوکړل ---
چي ستا دا خوښه ده---
نو ډير ښۀ دے اوکړل ---
ډير تاواني دے کړمه---
نه د دنيا شومه زۀ---
او نه د دين شومه زۀ ---
نه ده خپل ځان شو مه زۀ---
نه د بل چا شومه زۀ---
نه سم بينا ، نه نا بينا شومه زۀ
نه د کاکا نه د ماما شومه زۀ
تش د خندا شومه زۀ ---
هسي رسوا شومه زۀ---
خلق هوا سره خبري کوي---
زۀ لا په زمکه گرځيدلے نه شم
او لا زۀ مغسي، رو رو روان يم
ډيرپه مزه روان يم -------
غريبي ستړي دے کړم
غريبي ښۀ دے اوکړل---

خلق کړهٔ ډیرو خو راکونو سترې---

او زهٔ د لوړي مرمه، کړمه دردونو سترې

زما بوډي نشته دے---

زما نمړی نشه دے ---

خلق ما نړو کښې په غرور او سیرې---

څما د ملاستې ناستې ځائے نشته دے

خلق په ځان باندې نازونه کوی ---

او زهٔ-----------------

ځان ته کتلې نشم---

غریبی څه دے اوکړل

چې ستا ده خوښه ---

نو ډیر ښهٔ دے اوکړل---

وایم چې او خاندم---

که اوژاړمه ---

ځان ته حیرانه یمه ---

زړکیه صبر شه تقدیر به وی دا

زړکیه مه ژاړه نصیب به وی دا

دې کښې به خیر وی زما---

غریبیٔ خیر دې ښهٔ دے ---

ددې نه ډیره سخته---



ددې نه ډیرې تیرې

په غریبۍ شُکر دے---

په دے نیستۍ شکر دے---

د چا نه نهٔ کړم ګیله ---

هسې یودرد مې په زړګی کښې راشی---

هسې احساس مې په زړګی کښې راشی

زما زړګې د سمندر غوندې دے ---

زما زړګې خو د ساګر غوندې دے ---

چې پکښې هر څه ښهٔ پریوانه پراته --

زهٔ د سحر غوندې ---

ګریوان لړمه ---

چې پکښې هر څه ښهٔ بسیاره پراته

غریبی ډیره ښه ئې---

مې د زړګی، خوښه ئې

غریبی ستا چې خوښ یم---

زما خو لا خوښه ئې

غریبی څهٔ دے اوکړل---

غریبی ښهٔ دے اوکړل ---



## «مینه»

دا دومره ډیره مینه---

او هیڅوک د مینی نشته

حیرانه مي زړګي دے ---

پریشانه مي زړګي دے---

هیڅوک د مینی نشته ---

دا به څۀ کیږی زړګیه---!

دا مینه هیڅوک نه اخلی---

دا دردونه هیڅوک نه اخلی ---

دا وفا مي هیڅوک نه اخلی ---

او د مینی نه کړی کرکه ---

دا رسم د دنیا دے ---

د رنګ و شرنګ دنیا ده ---

توبه توبه له داسي ---

دا دومره عمر تیر شو ---

دا دومره دور تیر شو---

تنها تنها زۀ ئمه

وفا په چا کښي نشته



جفا په چا کښي نشته---

دلربا په چا کښي نشته----

ما یو جانان او نۀ موند ---

زما مینه حیرانه ---

زما مینه پریشانه---

دا څه درسره اوشو---

خلقه څه راسره اوشو ---

دا دومره ډیره مینه ---

هیڅوک د مینی نشته---



## «غزل» بهار

څومره ښکلي زندګی وه، څومره ښکلی مي بهاروو
څومره ښکلي ښه دنیا وه، څومره ښکلی مي دلداروو

تل زما به پرې زړه رو غ وو، پرې زما زړه به خوشحاله
مي به زړه بهار بهاروو، مي دا زړه ګلِ ګلزاروو

زه د دې په غم کښې ډوب وم، د دې غم ښکلي مزه وه
ما به تل دده تلاش کړو، که به یاروو او که اغیاروو

دا سپرلي زما نه ورک شو، دا جانان زما نه ورک شو
زما ورکه ښه دنیا شوه، دا په مینه څهٔ نا تاروو

تل به ما د یار ثنا کړه، مي په ژبه بل څهٔ نهٔ وو
یو بلبل وومه د ګلو، زما زړه به په چغاروو

زړهٔ زما کوی یادونه، کړی نرې نرې دردونه
ارماني ئی سحّر پرېښودو، دا د زړهٔ څنګه ماليار وو





## «بده ژبه»

د بدې ژبې، بد اخلاقو، نه امان غواړم
د ښکلی مخ، او ښکلي ژبې، ښهٔ انسان غواړم

هر څه ښائسته وی، خو دا بده ژبه نه وی ښائسته
د ښهٔ صورت سره، د ښهٔ سیرت جانان غواړم

په بده ژبه، بد اخلاقو، انسان بد لګی
زهٔ مینه، مینه او وفا، او خُوږ زبان غواړم

لوې ځناورو ی، چې څوک لویه ژبه خُله کښې لری
توبه توبه له سنګ دلانو، زهٔ آمان غواړم

په هر یو شعر کښې مي، درد او ښهٔ حکمت موندې شی
سحّر الله نه ښهٔ کلام، او ښهٔ بیان غواړم



## غزل "یاد"

ستا تلـه راتـه یـادیږی، ستـاراتلـۀ راته یادیږی
ستـا ښـکـلي ښکلي مینه، ستا کاتۀ راته یادیږی

څـه ستـا انتـظـارونـه ، څـه زمـا د زړۀ دردونـه
وختـی وختـی راتـلـي به ، نمر خاتۀ راته یادیږی

چې زۀ بـه درنـه لاړمـه، نو بیا بـه تـه خفا وي
نیـمـګـړي به دي زړهٔ شه ، کو زیدۀ راته یادیږی

چي ما درته کتل به، نو تا ټیټي به کړي سترګي
ستـا مینـه، مینه، مینه ، شرمیدۀ راته یادیږی

پـه تـا بـه پوهیـدمـه ، سوزیدي بـه مـا دپـاره
زمـا هجـر کښـي یـارهٔ، سوزیدۀ راتـه یـادیـږی

چي کومه ورځ به نه وے، زۀ به تاپسي پریشانه
بیـا پـټ پـټ مـا ژړل بـه ژړیـدۀ راتـه یـادیـږی

چي زۀ بـه تا سره ووم، مطمئینه به په ما وے
بـل شـانـي بـه تـۀ شولي، نـازیدۀ راتـه یـادیـږی

زۀ ستـا پـه طـمـع طـمـع، لا تراوسه لاري څارم
سحـر ګـوری هـره خواته، ستا لیدۀ راته یادیږی

دلبـرِي ستـا به یادیم، یا به هیر یمه څه اوکړم
د سحـر زړۀ کښي اوسیږي، اوسیدۀ راته یادیږی



## پټ

مـا پـټ کـه لـه انسـانـه
زۀ دهٔ تـه یـم حیـرانـه
څـوک نـه پـوهیـږی جـانـه

د روغ چـي وائـی دي دے
فـریـب چـي کـوی دي دے
چـي مـال تـه سوزی دي دے
ورتـه وګـوره جـانـانـه
مـا پـټ کـړه لـه انسـانـه

لـوئـی چـي کـوی دي دے
بـد خـوی چـي کـوی دي دے
مستـی چـي کـوی دي دے
دا واوره تـه زمـا نـه
مـا پـټ کـړه لـه انسـانـه

ظـالـم هـم دا انسـان دے
قـاتـل هـم دا انسـان دے
دا دنیـا ددۀ ارمـان دے
دي هسـي سـرګـردانـه
مـا پـټ کـړه لـه انسـانـه

حقونه د خپل زور خوری
هر چانه دے په زور خوری
حرام دے لور په لور خوری
لږ او ګوره بے ایمانه
ما پېټ که له د انسانه

کینه بغض ئې ډېره
بد نیتی پکښې بر سیره
غیبت ته ئې ښهٔ ګوره
ډېر اوری له شیطانه
ما پېټ که له انسانه

لیونی ددې دنیا دی
نادانه په خندا دی
بینا هم نا بینا دی
سرکشه دے نادانه
ما پېټ که له انسانه

د سپی غوندې غپل که
غوئی غوندې وهل که
د مار غوندې چیچل که
سحؔر نه وائی له ځانه
ما پېټ که له انسانه



## ﴿لوګي لوګي﴾

نُور کارونه به زهٔ پرېږدم، دا سیالی به برابر کړم
تا به واخلمه موټره! زندګی به برابر کړم

ډېر نا اهله مالیدلی، چې زما په مخ کښې تیر شی
وروستو پاتې شم له دوی نه، دا سورلی به برابر کړم

څوک له ډېر تکبره، په لار نه اودرېږی چاته
ځان لا برابراندې ګڼړی، دا شوخی به برابر کړم

کله زهٔ لوګي لوګي شم، کله زهٔ ایرې ایرې شم
په څهٔ کم نه ئې د چانه، غریبی به برابر کړم

ته به ووینی تربوره! یوه ورځ به دې زهٔ سیال شم
په موټر کښې به سوریم، دا نیستی به برابر کړم

چې پښتون، پښتون نه کم وی ځان دی او سیزی په اور
سحؔر دا نظم چې لیک کړو، شاعری به برابر کړم

## ❁څوک❁

زۀ څوک منمه، او څوک نه منمه
ټول برابر نۀ دي، زۀ دا ښائيمه

څوک دښمنان د نفرتونو ډک وي
ځنې ځاريږي، درته دا وايمه

څوک داسې سخت وي لکه کانړي د غر
څوک نرم نرم، لکه موم وونيمه

څوک د ښکلا نه، عجب ښکلي ښکاري
ځنې ازغې ازغې، زۀ دا ژاړمه

چې څۀ محسوس کړمه تري شعر کړم
سحّر شاعر دے، په قلم باندې هر څۀ ليکمه





## ﴿تشه خُله ـــ!﴾

لږه رانزدې شه ---
تش دخُلې يارې مې نۀ لګی
يارې زما زړۀ لګی ---
دا سې زما نۀ لګی ---
تشه خله مې نۀ لګی --
تشه خله به څۀ وي ---
ټول درو غ درو غ ---
کله يو څۀ کله بل څۀ ---
يارۀ! بيا هيڅ څۀ نۀ وي
بيا ئې پته نۀ لګی ---
داسې يار مې نۀ لګی ---
هسې په هوا کښې تۀ خبرې کړې
هسې د سزا سره خبرې کړې---
سمه رانزدې شه که يارې کوې
د خلې خبرې څۀ ته وائی ---
داسې يارې څۀ ته وائی---
هسې خندا څۀ ته وائی---
زما د زړۀ رښتيا خوښ وي---

زما د زړهٔ دنیا خوښه -----
ښهٔ مي دلربا خوښه -----
دتشي خُلي یاری څهٔ وی
باد بانړهٔ په څهٔ ښهٔ وی
کلکه ښهٔ یاری ښهٔ وی
ښکلي یاری ښهٔ لګی ---
ښهٔ دلبری ښهٔ لګی---
تشه خُله مي نهٔ لګی---



## یو خیال

لـوګـي لـوګـي دي کـړمـه
ایـري ایـري دي کـړمـه

تـا پـه خـنـجـر وهـلـي
سـوري سـوري دي کـړمـه

اورمـي اخستـي ګـلـي
لـمبـي لـمبـي دے کـړمـه

جـانـانـه ټول مـي کـړه لړ
ټـو کـړي ټـوکـړي دے کـړمه

سـحـر ستـا وائـی غـزل
نـغـمـي نـغـمي دے کـړمـه

## ﴿غريبي﴾

هسي هم غريبي نه ځي، نو ځان ولي کړم خراب
هسي هم دا نيستي نه ځي، نوځان ولي کړم کباب
دا دنيا چې مې شي تيره، نو به څه کړمه جواب
هسي هم غريبي نه ځي، نو ځان ولي کړم خراب

خواهشونه چا پوره کړه، نه پوره به شي ارمان
عجيبه غوندي دنيا ده ، عجيبه غوندي جهان
دي دنيا کښې وفا نشته، وفا دا رئي دي انسان
صبر صبر شه زړگيه، څه دنيا څه ئي حساب
هسي هم غريبي نه ځي، نو ځان ولي کړم خراب

دا وختونه يو هوا دي چي تيريږي
دلته هر دم کښې فنا ده دا څه کيږي
زوړ زائل شي نوي راشي تول بدليږي
وخت په وخت باندي، بنديږي هر يو باب
هسي هم غريبي نه ځي، نو ځان ولي کړم خراب



حلال خوره، انسانه بچ شه له حرامو
لکه اوښ غوندي، خوراک په دواړو جامو
په ړندو سترګو ، روان په کاموکامو
په نشه کښې دی، تا څښلي سم شراب
هسي هم غريبي نه ځي، نوځان ولي کړم خراب

دلته ښه وختونه تير کړه غنيمت دے
د حرامو نه ځان بچ کړه صداقت دے
ژبه بنده کړه ، انسانه شرافت دے
سحَر ليکي د خپل زړۀ نه دا کتاب
هسي هم غريبي نه ځي،نو ځان ولي کړم خراب

## زوال

ترکومه به زهٔ داسي، یو ورځ به شي زوال
رو رو یاره رژیږم په مثال لکه دیوال

ځوانی تېول عمر خو نهٔ وی، او نهٔ تېول عمر بهار
په آخر کښي به شي خاوري، یاره وګوره مثال

دا څهٔ وو او څهٔ را وشو، زما یاره!
پرون ښکلي مي بهار وو، نن مي وګوره بد حال

په چل چل کښي بهار لاړو، په رو رو راغي خزان
هر څهٔ تېول لوګي لوګي شو، زندګی مي شوه جنجال

څه عجبه زندګی ده، دا هر دم لری زوال
یوه ورځ به ته هم کوچ کړي، ځان سحٓر! کړه سهنبال





## ځواني او مینه

چي ځواني وه، او بهار وو
ښکلي ښکلي وو، او زهٔ وي

ما د دوی سره کړه مینه ---
خندیدهٔ خوشخالیدهٔ وي

بوډا توب وي چرته لري
زریدهٔ ر،ژیدهٔ نه وي

چي ما ګل نه شوکولي
پکښي هسئ ګرځیدهٔ وي

ما د دوی سره کړه مینه
خوشبوئی وه بوئیدهٔ وي

دوی په ما باندي ښائسته وی
زهٔ په دوی باندي ښائسته وی

چي تېول عمر مي دا ذوق وي
پکښي زهٔ میشته میشته وي

مینه مینه وفا نُور دے
ښکلي نُور زما په زړهٔ وي

چي سحٓر سحٓر سحٓر وي
مینه مینه وي او زهٔ وي

## ﴿غزل﴾

قدمونه راته ښکاری، تصویرونه راته ښکاری
هغه لارباندي چي تلي ، ستا پلونه راته ښکاری

هغه لارو ته چي ګورم، راته ستا مینه یادیږی
ستا خیالونه زۀ راوخلم ،ستا یادونه راته ښکاری

اوس ته نه ئی بي قراره، زۀ یوازی یم تنهایم
تیر وختونه راته ښکاری، ستا دردونه راته ښکاری

زما ستا سره وه مینه ، دا ریښتني وه ریښتني
یو اعجازوو کرامت وو، قدرتونه راته ښکاری

هغه لاربانديِ چي تلي ، اوس پرې مینه ماتومه
پکښي ګورمه ته نه ئی، ستا عکسونه راته ښکاری

زۀ لا تا غواړم ته نه ئی، مي په زړۀ دننه اوسي
یو یوځای ته په ارمان شم ، قدمونه راته ښکاری

ستا بیلتون که یو سوراور دے، زما زړۀ لره تکور دے
سره ګلونه ما د پاره ، بهارونه راته ښکاری

ستا دیدن ته زۀ لیواله ، ستا راتلو ته بے قراره
که ته نه راځي سحرله ، امیدونه راته ښکاری



## ﴿موري۔۔!﴾

رب دي اوبخښه اے موري
دا دعا کړم ستا په لوري

که راچانړ کړمه دا خاوري
ستا به او نۀ مومم سیوري

ډیره ډیره مي یادیږي
مي په زړۀ کښي هو سیږي

په ما ډیر عمرونه تیر شو
په ما ډیر غمونه تیرشو

چي ته نه ئي زۀ نیم کړي
چي ته نه ئي زۀ زړۀ ستړي

ته به خاوري خاوري شوي
ته به سختو ډیر زپلي

ما ته ډیره رایادیږي
موري مانه نۀ هیریږي

ما ته هروختي ولاړه
اے زړګیه ژاړه ژاړه

ستا بیلتون زغملي نه شم
چا ته حال وئیلي نه شم

لا نیمګړي یم تراوسه
لا غریب یمه بې وسه

زړهٔ تراوسه مې خُوږیږي
زړهٔ تراوسه مې ژړیږي

رب دې اوبخښه اے موري
دا دعا کړم ستا په لوری

ګوره څه حال به د تا وی
د مړو څه به مشغوله وی

ته زما نهٔ هیریږي
هر لمحه راته یادیږي

ته ذرې ذرې پرته به
خاورې خاورې ئې ورسته به

څه حالونه به د تا وی
تهٔ به ښهٔ ښکلي صفا وی



رب دې اوبخښه اے موري
دا دعا کړم ستا په لوري

زما زړهٔ درپسې ژاړی
نن ستا مینه ډیره غواړی

دلته څوک د میني نشته
هیڅوک خوږ د ویني نشته

ما ته ډیره رایادیږي
زما زړهٔ نه نهٔ هیریږي

زما زړهٔ نن په ژړا دے
مې قلم هم په درزا دے

نن په تا لیکم شعرونه
زړهٔ مې ډیر کوی دردونه

تش آهونه فریادونه
دا زما د زړهٔ یادونه

یم د غم په یو بازار کښ
موري نهٔ یم په بهار کښ

ستا دردونه زهٔ لیکمه
دا خپل زړهٔ ټکوومه

نن سحّر ستا په ژړا دے
ستا فراق کښې یک تنها دے

رب دې اوبخښه اے موري
دا دعا کړم ستا په لوري

ستا خبرې نه ختمیږي
ستا دردونه نه ښهٔ کیږی

په دردونو هیڅ نه کیږي
په یادونو هیڅ نه کیږي

رب دې اوبخښه اے موري
دا دعا کړم ستا په لوري





## زما مینه

زما مینه خدائی ده
زما مینه قدرتی ده

زما یو جانان څه نهٔ دے
مې هزار ځایه دوستی ده

ویم چې تیر دې کړم جانانه
زما زړهٔ ته ډیره ګرانه

څومره تا کښې خوش روی ده
څومره تا کښې ښهٔ مستی ده

څومره خوږ رابانديِ لګي
ته به وائی چې مصری ده

ستا ادا کښې ښکلي حُسن
د بهاریوه مستی ده

زهٔ نور یږم درته یاره
ما راتول که تباهی ده

ښکلي خوند دے ستا د میني
ستا وجود کښې ښهٔ خوبی ده

د سحّر زړهٔ ته نزدوئی
زما زړهٔ کښې ستا لوئی ده

## بد نیتي

د بد نیتي نه د لوئي نه مي زړګي ستړي دے
بي ضميرۍ او نا اهلۍ نه مي زړګي ستړي دے

زۀ دا بي ميني بي وفا خلق په څۀ پوهه کړم
بي وفائۍ ، لا پروائۍ نه مي زړګي ستړي دے

وفا او مينه که بازار کښې خرڅيدلي ښۀ به
د بي خودئ ، بي وفائۍ نه مي زړګي ستړي دے

دا خوږه ژبه ، ښکلي نيت ، اخلاص به کوم ځائي کښې وی
د ګونج تندی ، بد زبانئ نه مي زړګي ستړي دے

کينه او بغض حسدونه خلق ولی کوی
د خود غرضئ، بت پرستئ نه مي زړګي ستړي دے

خلق پيسه اخلی، انسان نه اخلی داڅۀ کوی
ځان پرستئ مال پرستئ نه مي زړګي ستړي دے

خلق بي ځايه، بے ګودره دا لوئی ولی کړی
لوئی خو الله دے ،د لوئئ نه مي زړګي ستړي دے

خوارۀ اخلاق ، خوارۀ افراد په دنيا څۀ شو سحّر
ډيره مي اوکړه شاعری د شاعري نه مي زړګي ستړي دے



## ښکلي

قسم قسم ښکلي وی، کوم يو زۀ جانان کړمه
کوم يو زۀ دلدار کړمه ،کوم يو خپل ارمان کړمه

زۀ د خدائی قدرت ته حيرانيږم چي دوی او ګورم
کوم يو ته زۀ او ګورم، کوم يو زۀ خپل ګران کړمه

يو د پاسه يو ښکلي، بل د پاسه بل ښکلي
ښکلي په دلو دلو، کوم يو زۀ خپل ځان کړمه

هر يو مي زړګي وړی، هر يو مي ځيګر سيزی
کوم يو رانزدي کړمه، چا باندي احسان کړمه

سحّر پخپله ښکلي دے، ځکه ئي ښکلا خوښه
هر چا سره مينه کړم، يو به زۀ انسان کړمه



## انسانه !

نا وخته وی هروختي
په تاوی سختي سختي

هروختي په تلوارئي
هروختي بے قرارئي

وختی دي چري نه کرو
يو ځان دي ياره څۀ کړو

دنيا پسي لګيا ئی
د ځان نه لا پروائي

آخر به دا تر کومه
ته داسي ئي همدمه

څه جور دي کړه دنيا نه
هروخت ستړي ستومانه



ته هله به قرار شي
چي خاورو کښي انبار شي

وختی بيا په تا شی
فنا به دے بقا شی

په خاورو کښي به پروت ئی
او دۀ به ته بي صوت ئي

هروختي ئي په منډه
د خدائی نه کوي څنډه

سحـَر وائی وختی که
ځان صبر کړه ستی که



## پښتو

پښتو له خلقو هیره شوه، انګلش کښې ماهران شو
څوک انجینئران شو، خلقه څوک ښۀ ډاکټران شو

د مور ژبه ترې هیره شوه، پښتو پورې خنداکوی
کوټ پتلون ئې واچوو، د ځیلمې عیسایان شو

پښتو کښې لیک او لوست هیڅوک کوې نشی
سپکه دوی پښتو ګڼړی ، دا څنګه افغانان شو

بنګلې په انګریزې کښې دی، روپۍ په انګریزې کښې دی
عزت په نورو ژبو کښې، څنګ پوهه هوښیاران شو ؟

پښتو باندې څوک څۀ کوی ، اردو باندې څوک څۀ کوی
عهدې پکښې موندې نشی ، دا څکه انګریزان شو

خپلې جامې ئې وویستې ، د بل جامې ئې واغوستې
د شا نه ټول ښکارېږی ، پښتون خواه کښې فرنګیان شو

ګیله د پښتنو نه کړم ، پښتو ئې ولې پرېښوده
سحّر ! مورنۍ ژبه، دا ستاد لیک او زبان شو



## یاری

څوک یاری نشی کولې
دلبری نشی کولې

دوستی نه شی کولې
او خپلوی نه شی کولې

دا مینه د زړۀ غواړی
دا وینه د زړۀ غواړی

د وخت انسانان ډیر وی
په سختو کښې بیا هیر وی

د زړۀ نه چې ستا یاروی
هم دغه ښۀ دلداروی

دا غمه سینه غواړی
د زړۀ نه مینه غواړی

یاری نوم د اخلاص دے
په خاصوکښي بیا خاص دے

د لارې یاران ډیر وی
د وخت سره دوی هیر وی

ښکاره ښکاره مې دا ووې
سحرؔ! تا په چا ووې

سحرؔ ځکه تنها دے
ښه پیژني بینا دے





## ښځې !

په نیمه لاره کښې چا پرېښي ئِمه
هسې جانان باندې زۀ پیتې ئِمه

خلقه دا ځکه لیکم
ځکه دا ښۀ ښۀ لیکم

د ښځو یاری څۀ وی
ددوی دلبری څۀ وی

دوی یاری نشی کولې
دوی دوستی نه شی کولې

دا ښځې بې وفا وی
دا زړه ئې په هوا وی

کینه بغض ئې ډیره
غیبت کوی بر سیره

دا ښځې بې وفا وی
په هر څه نارضا وی

بد ژبې پکښې ډیرې
دوی چغې وهی ډیرې

د میني دوستی نهٔ وی
د ښکلي خپلوئی نهٔ وی

دوی هسي ښکلي ښکاری
دوی سوي ښکاری

د دوی به څهٔ نشه وی
د دوی به څهٔ غصه وی

د پیسي هم ښځي نه وی
د ټکي هم ښځي نه وی

غلط مه شه په ښځو
اوچت مه شه په ښځو

دا ځان له عجب قوم دے
زراوښکی څځئ موم دے

د نیا پسي رواني
عجیبه غوندي ناداني

سبق ډګري ئی خوښي
عهدو کښي غواړي برخي



صفا صفا مي اووئي
د ځان او ستا مي اووئي

د نیمی لاري مل وی
ګنی وی او نهٔ نل وی

یو څو د میني ډکي
ښائسته لکه لولکي

-دوی ډیري وفاداری
عجیبه غوندي دلداري

اکثري بے وفا وی
نه ستا وی او نه زما وی

د هیڅ هم ښځي نهٔ وی
معنی ئی ښکلي نهٔ وی

دا هسي اخوا دیخوا
په تا چي شی څوک پیښا

سحر دا دي څهٔ ووئي
صفا صفادي ښهٔ ووئي



## ځان ته

هر څهٔ مې خُوږوی یاره
هر څهٔ مې درد وی یاره

د درد سره مې کار دے
داغ م زما دلدار دے

هر څهٔ ته خفه کیږمه
هر څهٔ ته زهٔ ژړیږمه

زخمی زهٔ په څیکریمه
چا ویشتې په تېریمه

هر څه کښې حقیقت ګورم
هر چا کښې محبت ګورم

د مینې سرو کاریم
د ښکلې څیز دلداریم

د غم نه شعر جوړ کړم
په دے باندې زړهٔ سوړ کړم



الفاظ کی مطلب نغاړمه
مطلب الفاظ کښې غواړمه

په شعر ښهٔ مضمون پېدمه
فرهاد کله مجنون پېدمه

په خیال باندې ماهریمه
د مینې ښهٔ شاعریمه

د هر چا وفاداریم
د مینې پا متّه داریم

دا نه چې دنیا داریم
سحؔر یو ادب کاریم



## آذاد نظم ژوند

انساني ژوند د سختو نه تفصيل دے
څوک پوهيږی او څوک نه---
ژوند د سختو عبادت دے---
ژوند د سختو يو عادت دے---
هر انسان دے ستړي ستړي
زۀ ئې وائمه په چغو----
څوک نوکرو کښ ګير دے
څوک مزدورو کښ ګير دے
څوک خوشحالو کښ ګير دے
څوک ژړيدو کښ ګير دے
څوک زميندار دي پکښې---
څوک ټکيدار دے پکښې ---
څوک چوکيدار دے پکښې ---
څوک سبق کار دے پکښې ---
څوک دوکاندار دے پکښې ---
عجيبه ژوند دے ياره -------
د ماشوم والي نه تر مرګ پورې---
څوک ملګان دی پکښې---
څوک عالمان دی پکښې---
او څوک شاهان دی پکښې---
څوک عالمان دی پکښې---
څوک با هلان دی پکښې---



څوک هوښياران څوک کم عقلان دی پکښې
څوک مالداران دی پکښې
او څوک خواران دی پکښې
عجيبه ژوند دے ياره ---
عجيبه خوند دے ياره ---
چې نۀ کوی نو بيا هم ---
ګران دے ياره ---
سوالی به درنه جوړ شي
مالی به درنه جوړ شي
خيراتی به درنه جوړ شي
دي کښ مرګ راشی ناڅاپه---
مرګ خو ټوقی نه دی ياره ----
دا ځان له يوه سخته ----
عجيبه غوندي داستان ---
عجيبه ددې ګزران ---
د دې حال وئيلې نه شم
د يادولو نه دے ---
د ژړيدلو نه دے ---
د تيرولو نه دے ---
مرګ عجيبه غوندې دے---
دغه دې ژوند د انسان---
دغه سحر د جهان---
دا دې انسان او انسان---
نورپرې زۀ څه اوليکم---

## هر څه ډیر شو

هر څه ډیر شو---
اخلاق لاړۀ---
مذهب لاړۀ---
ادب لاړۀ---
خپلوی لاړه---
دوستي لاړه---
خوږه ژبه شوه ترخه---
هر سړي دفرعون خوي دے
په ارمان پسي وارن
په خواهش پسي ئي منډه
نه ئی ځان باندي څه پام
نه په بل باندي څه پام
ښکلي ښکلي بنګلي ډيري
ښکلي ښکلي ډوډی ډيري
ښکلي ښکلي جامي ډيري
ښکلي ښکلي عهدي ډيري
نور څه حال وئيلي نه شم
انسانان ځناوران---
په غلطه لارروان---
پاک پليد د چا څه نشته
حياء لاړه---
شرم لاړۀ---
پښتو لاړه---
انسانان راته کم ښکاري---
ماليدلي ډير ياران
سحر وائي په ارمان
په ارمان، ارمان، ارمان



## حاسد ته

حاسد حسد مه کړه زۀ شاعريمه کنه
تۀ او وګوره لږ ما، زۀ باصريمه کنه

که شاعرئيمه نو څۀ، که نۀ ئيمه نو څۀ
خيبرئيمه کنه، زه خاطريمه کنه

راکړي خداے عطا ده، دا زۀ نۀ ښايمه چاته
په ادب باندي ښۀ پوهه، قلندريمه کنه

نيسان نه چرته راشي دا يو څا څکي له آسمانه
ته وګوره سيپي کښي، ښۀ ګوهريمه کنه

که مني يارنو ښۀ، که مانه مني نو څۀ؟
زۀ مينه، مينه، مينه، ښۀ دلبريمه کنه

هر څۀ باندي پوهيږم سترګه وريئم د قوم
تيزفهم، فراست مي، تيزنظريمه کنه

که نهٔ مني حاسدان ته یو داسي کتاب راوړه
لړ راشه مخامخ شه، زهٔ رهبر یمه کنه

که غلي یمه یاره ناداني نهٔ ده زما
څهٔ وګوره زما ، زهٔ دفتر یمه کنه

هر څه باندي لیکي شمه کمال راته حاصل دے
جمال لرم په شعر کښي، په سر یمه کنه

په ټوله پختون خواه کښي به مي ووینی یو ورځ
رنړا کړمه پښتو کښي، ښهٔ یو نمر یمه کنه

وئیلي مي ده مي ډیره شاعري په هر ادب کښي
دچا نه ورستو نه یم، زهٔ بهتر یمه کنه

دا تاج د شاعري، زما په سر ایښي دي خدائۓ
په صف د شاعرانو کښي ، افسر یمه کنه

بي ځایه حسد مه کړه ځان ته وګوره چي څهٔ ئي
په شعر کښي مي وګوره ،سحر یمه کنه



## ﴿ښکلي ښکلي﴾

هسي به بد نام شي، بے وفا وی ښکلي ښکلي
هیڅ هم نه وي یاره ،په هوا وي ښکلي ښکلي

نهٔ ورکوی ځان چاله، او نهٔ ورکوی مینه
ځان ته پسخوی به تا، جُدا وی ښکلي ښکلي

زړهٔ به درله وچوی، ځیګر به درله اوسیزی
نه راځي دوی خواله، د دنیا وی ښکلي ښکلي

مرد وی او که ښځه، همه واړه بے وفا وی
حوره د جنت که، یا لیلا وی ښکلي ښکلي

ما ډیره یاری کړي، ما ډیره خواری کړي
هیڅوک یار مي نشته، بي نوا وی ښکلي ښکلي

دا ښکلي به تیر شي، خلقه نور به راپیدا شي
چا باندي غلط مه شئ، سدا وی ښکلي ښکلي

ټول عمر مي تیر شولو، جانان د میني نشته دے
مونږه پوري خاندی، په خندا وی ښکلي ښکلي

څه راسره وشو، دا نصیب به د ازل وی
نهٔ یم مطمئنه، که بلا وی ښکلي ښکلي

## دا دومره

دا دومره ډېره مینه، او هیڅوک دلربا نشته
دا دومره ډېره مینه، او هیڅوک مې خوبا نشته

هر څوک په خپلو لارو، او په خپلو کوڅو سردي
څوک چاته وزګار نه دي، او څوک هم سوا نشته

د خپل غرض یاران دي، او د خپل مطلب یاران دي
د کاره پورې یار وي، او بیا څوک هم اشنا نشته

مخ د مخ یاري ده، او په شا څوک یاري نه کوي
د وخته پورې یار وي، نن وي او سبا نشته

ما ډېره مینه کړې، خو ما څوک نه دي موندلي
ورک شوي رانه هر څه، بازار شته او سودا نشته

کاش چې بې میني پیدا وې، داسې نه چې زهٔ شیدا وې
مینه شته او سحَر شته، خو وفا نشته





## پروا

د چا پروا به څه کړم، چا پروا زما و نه کړله
د چا یاري به څه کړم، یاري اشنا و نه کړله

خلق مالداران، او ښکلي خلق د یارۍ ګوري
ورکه بدرنګي دې شي، هیچا وفا و نه کړله

زه ساده باده یمه، غریب یمه، بې وسه یم
رنګ او شرنګ مې نشته دے، بابا، رضا او نهٔ کړله

دومره نزاکت لرم، هیڅوک هم نازک نشته دے
سپک نظر مې یار کړلو، وفا هیچا و نهٔ کړله

نه چې پرې پوره او څوک نیمګړې، څوک پرې څهٔ کوي
څوک په داسې څهٔ کوي، وفا سبا ونهٔ کړله

زهٔ سحَر څهٔ نهٔ وایم، دا به وو نصیب زما
هسې په بازار شومه، ما سودا او نهٔ کړله



## «موږ شو»

هر چا نه مي زړۀ موږ شو
د بابا نه مي زړۀ موږ شو
د دادا نه مي زړۀ موږ شو

هر چا کښې مينه نشته
د لربا کښې مينه نشته
په خوبا کښې مينه نشته
دي فضا نه مي زړۀ موږ شو
د هر چا نه مي زړۀ موږ شو

هر چا نه دی، وتلي دی د ميني ترانې
په ذهن ئې غرېږي عجيبه غوندي نغمې
په چا باندي څوک څه کاء، دا انسان شو ليونې
د لالا نه مي زړۀ موږ شو
د هر چا نه مي زړۀ موږ شو

نه خُوږ په چا کښې شته دي او نه درد
وجود او زړه ئې دواړه هسې سرد
بې ميني او تنگ دله هر يو فرد
د کاکا نه مي زړۀ موږ شو
د هر چا نه مي زړۀ موږ شو



ورک شو به وختونه، چې وه تولـه مينه مينه
گير چا پيره خپل وو، همه تولـه وينه وينه
وختونه تول ورکيږي، دا روان دی ځينه ځينه
د سبا نه مي زړۀ موږ شو
د هر چا نه مي زړۀ موږ شو

هرڅوک چي شولو داسي، نو په کوم طرف زۀ لاړ شمه
کوم ځائی کښې زه کښينمه، اوکوم ځائی زۀ ايسار شمه
لاري تولي بندي شوي، زۀ لاړ په کومه لار شمه
بې وفا نه مي زړۀ موږ شو
د هر چا نه مي زړۀ موږ شو

اوَل سحَر نا پوهه وو، هر چا ته به خوشحاله وو
يو شکلي زلميتوب به وو، دا ځکه به سو کاله وو
نشه مي د ځواني به وه، دا ځکه دي پر کاله وو
د خندا نه مي زړۀ موږ شو
د هر چا نه مي زړۀ موږ شو



## ❁آخره زمانه شوه❁

آخره زمانه شوه، غریبان شو مالداران
ډوډۍ چې به ئې نه وه، هغه ټول شو باداران
آخره زمانه شوه

پښخوا به ئې له لوږې، واږهُ خله وه تل نیولي
اوس مال پرې رواریږي، په شیبو لکه باران
آخره زمانه شوه

کچه به ئې کورونه وو، په ختمو کښې دیره وو
اوس ناست دي په بنګلو کښې، هغه خلق شو خانان
آخره زمانه شوه

هغه خلق چې به غټ وو، په مزه مزه واړهٔ شو
کورونه ئې تس نس شو، په رورو شو غریبان
آخره زمانه شوه



د کوردرک ئې نه وو، به ئې کډې ګرځولي
هغه خلق راښکاره شو، لکه نمر په ټول جهان
آخره زمانه شوه

خواران وو غریبان وو، مزدورۍ به ئې کولي
اوس پرق وهي له لرې، لکه ستورې د آسمان
آخره زمانه شوه

ما ګیر چا پیره اولیدل، ډیر ښهٔ یم ګرځیدلي
آباد شو هغه خلق، چې هیڅ نه وو څهٔ زمان
آخره زمانه شوه

واړهٔ واړهٔ ټول لوئې شو، او غټ همه واړهٔ
محسوسه ما سحّر کړه، نن مې اوکړو دا بیان
آخره زمانه شوه



## ❁ قربان قربان ❁

د بل شاهي باندې به څه اوکړمه
لوګي لوګي د غريبۍ نه شمه

يوه نمړۍ د چا موندې نشي څوک
قربان قربان خپلې خوارۍ نه شمه

ټول کنجوسان دي، هرچا خپل لاسونه کلک نيولي
قربان قربان د خپلې مورې د چاچۍ نه شمه

په بد نظر په سپک نظر چې درته خلق ګوري
زۀ دے بيا لرې ددې ښې، مسلمانۍ نه شمه

د بل په لويو خوراکونو پلاؤنو به زۀ څۀ اوکړمه
قربان قربان د خپلې سپورې ښۀ ډوډۍ نه شمه

که څوک خانان او بادارن وي، دوي به ځان له خانان
د الله شُکر زۀ خوشحاله فقيرۍ نه شمه



ما ډير ليدلي دي دوستان، او بے شماره خپلوان
د هيڅ هم نه وي، بيا قربان د ملنګۍ نه شمه

که ټوله ورځ ګرځې، نو ګرځه ورې څۀ چل وشو
چې مړوي مې، زهٔ لوګي خپلې ابۍ نه شمه

هسې په کډو وډو سر به، چې د بل سره ناست
لوګي لوګي د خاموشۍ او تنهائۍ نه شمه

کورته چې راشي سحّر موړشي، باهر وړي ګرځي
که هغه هر څۀ وي، لوګي خپلې کټوۍ نه شمه



## غزل

هر څوک ذکرونو او فکرونو نه وتلی دے
ډیرو پسي ګرځي، په دنیا کښې لګیدلي دے

خلقو نه د ښهٔ او بد تمیز ګوري چي څهٔ شولو
هر څوک څناورشو، دي پیسي ښهٔ شرمولي دے

لاړه هغه ښهٔ مسلماني په هوا لاړله
تش خس و خاشاک شهٔ، مسلمان ما ښهٔ لیدلي دے

څوک هم چاته نه وی، جوړ چي مینه کړی
ښکاری چي انسان، دا خپل عظمت هسي بائیللي دے

ذکر او څه فکر خامخا دي هر انسان کوی
بے فکره حیوان دے، په قرآن حکم راغلي دے

زهٔ چي څهٔ محسوس کړمه لیکي شمه شاعرئمه
دا که هر مضمون وی، سحَر ښهٔ شان کښې لیکلي دے



## غزل

چي خوا کښې نه ئي، ستا یادونه راځي
تراخهٔ وختونه راځي، څنګه وختونه راځي

دا ستا د تلو سره، ماله فکرونه راځي
هره لمحه کښې د ژوند، دا ستا خیالونه راځي

زهٔ لیوني دي کړمه، چي تهٔ جدا شوي رانه
هسي سوزیږمه زهٔ، ستا ارمانونه راځي

په بیلتانه دي یاره، د ژوند خوندونه لاړهٔ
هر وخت یادیږي راته، دا ستا سوچونه راځي

دا ستا د غمه یاره، ډیر پریشانه یمه
اوښکي بهیږي زما، په ما رودونه راځي

ستا په لیدو به زهٔ بل شاني وومه
نشته جانان، نه دیدونونه راځي

دغه مي حال وو نوربه څهٔ اولیکم
زهٔ خو سحَر یمه شاعریم، ښهٔ شعرونه راځي



## ﴿د خپل جانان په ليدو﴾

نن مي اوليده په لاره
خپله ښۀ ښکلي دلداره

زرۀ مي پريوته له ځانه
چي مي اوليده ګلزاره

زړۀ زما په ژړا سر شو
دا ګيله مي له بهاره

زما زړه ئی له ما وړي
ولي ځی دا له کناره

بيا د خيال دنيا ته لاړم
انديښني شولي بې شماره

ميني اُورراباندي بل کړو
زۀ يو دم شومه بيماره



ښکلي مخ ته حيرانيږم
مجبوري مي ده اے ياره

جدائي زما نصيب دے
هيڅوک نشته ما د پاره

دي که اوليدمه څۀ شو؟
دا کړی ځان په ما نانجاره

زۀ عاشق يمه شاعريم
هر څه ليکم په اشعاره

ښکلي مخ ئی رايادېږی
سحّر وائي دا بيسياره



## خپل کورته!

تا کښې آرام او راحتونه پراته
تا کښې زما د زړۀ یادونه پراته

زما د خاورو ختمو خړ کوره
تا کښې زما ټول احساسونه پراته

ته مې د پلار ته مې د مور نخښه ئې
تا کښې د مور ښکلې وختونه پراته

ته مې د ښکلې ماشوم والي نخښه
تا کښې زما ښائسته رنګونه پراته

تا به ورنۀ کړمه په ښکلې محل
تا کښې زما سوی دردونه پراته

تا ته چې راشمه آرام او موم
تا کښې دوا او ټکو رونه پراته

تا نه باهر چې شمه وږي شمه
تا کښې زۀ موړ شم ډیر څیزونه پراته

ستا نه جدا زۀ شوګیرې کومه
تا کښې آرام او ډیر خوبونه پراته



کله چې ستړې شم ارمان دې کوم
تا کښې افسوس او ارمانونه پراته

د چا چې کورنۀ وی حیران یم ورته
شعر کښې زما، ځکه آهونه پراته

زما د سختو، د آرام کوره
تا کښې زما زړۀ داغونه پراته

د خاورو ختمو زما خړ کوره
تا کښې زما ډیر تاریخونه پراته

تا نه چې اوځم مسافر شمه زۀ
تا کښې ځایونه، منزلونه پراته

د ختمو خاورو زما خړ کلیه!
تا کښې زما ښۀ تصویرونه پراته

ته خو یو کورنه ئې، زړګې ئې زما
نن د سحر په تا شعرونه پراته



## ﴿غزل﴾

ډيـر خـلـق بـي فـائـدې وی، بې فـائـدې خبـرې کـړی
دا خـلـق نـه پـوهيـږی، بـې مـعـنـي خبـرې کـړی

دې خـلقـو ځـان لـه هسـې، يـو فضول کـاردې کـتلی
دنيـا پسـې لـګيـا دی، دا سـرې خبـرې کـړی

د کـاراود مـطـلـب خـو يـو وړه غـونـدې خبـره
دا هسـې ټـول وئيـږی، بـې مـزې خبـرې کـړی

دا ډيـرې سـرګرمـۍ، څـه عجيبـه چې تـه ئـې کـړې
دا ژونـد دې مـخـتـصـر، او تـه اوږدې خبـرې کـړی

دې ژونـد کښې دی څۀ بل څه؛ او ته بل څۀ بل څۀ کړې
ځـان پـوهـه پـه دې ژونـد کـړه، څـۀ وړې خبـرې کـړی

خـامـوشـه شـه ! کـهـرا شـه، مستقيم دې کـړه ايمـان
دا لـړه‌زنـدګـې ده، او کـړې خبـرې کـړی

سحّـر ! ځـان تـه ګـوره، او دا ژونـد اوپيـژنـه
تـه اصـل کښـې څـۀ نـه ئې، او تـودې خبـرې کـړی



## ﴿غزل﴾

ځـان تـه چې مي خيال شو، د اغزل مي اوليکو
ورک چـې مـې جـمال شو، د اغزل مي اوليکو

خـلقـو تـه چې ګـورمـه ځان تـه خفـه کيږمـه
مـخ مـې پـه بـل حـال شـو،دا غزل مي اوليکو

خـلق ښکلي ښکلي شو، زۀ لکه ګل مړاوې شوم
پيـښن راتـه جـنـجـال شو، دا غزل مي اوليکو

مـخ مي ګونجې ګونجې شو، ښکلې ځواني لاړله
ورک د يـا ر وصـال شـو، دا غـزل مـې اوليـکـو

ژونـد بـانـدې خـفـه يـمـه، زۀ سحّـر تيـريږمـه
درې پـنـځوس مې کال شو، دا غزل مي اوليکو



## ﴿ځان ته﴾

زۀ په ځان باندې پوهېږمه ښۀ نۀ يم
دم په دم باندې غورزېږمه ښۀ نۀ يم

ټول وجود زما درزيږي بل بل شان دے
هيڅ بې هيڅه زۀ خوږيږمه ښۀ نۀ يم

يوه ښکلې زندګي وه يوه ځواني وه رانه لاړه
ځان ته ګورم خفه کيږمه ښۀ نۀ يم

خدايا مخکښې به څۀ حال وي نۀ پوهيږم
دې دنيا نه زۀ ورکيږمه، ښۀ نۀ يم

دا دنيا به داسې وي او زۀ به نۀ يم
ګورستان کښې به اوسيږمه ښۀ نۀ يم

دا غزل مې په ځان اوليکو د لګيريم
زۀ سحرؔ هسې دوريږمه ښۀ نۀ يم



## ﴿روغ صورت﴾

روغ مې ساته خدايه! نور مې هيڅ نۀ دي پکار
روغ صورت راته ته راکړې اے زما پروردګار

تن زما چې بچ کړې، ځما خدايه له آفته
دغه مې پکار دي، د څه نه ئيم سروکار

روغ چې دې صورت وي، نو دا واړه دنيا ستا ده
روغ چې ته په تن وې نو د هر چا به دلدار

ملک که د سرو زرو شي، نو څۀ شي؟
تن چې زما ښۀ وي، د همه دنيا سردار

ښکلې ژوند هغه دے، چې په تن باندې ته ښۀ وې
روغ چې دې صورت وي، نو همه بهار بهار

روغ صورت بادشاه دې، دا نور نۀ دي باد شاهان
پته هله لګي چې رنځوره شې، بيمار

هر څه بې معنې دي بې له تا روغه صورته!
هيڅ مې دې څۀ نۀ وي چې په زړۀ مې وي قرار

روغ صورت سحرؔ! تا ته ډير زيات محسوسيږي
زۀ چې څۀ محسوس کړم، په هغې ليکم اشعار

## ﴿عبدالصمد په مرګ﴾

*په ۵ اپریل ۲۰۱۷ء مرګی په بې دردی یوړو*

(ورارهٔ)

لاړې خاورو کښې اوسیږي اوس راتلې نشي خپل کورته
ګورستان دتا وطن شه راوتې نشې بل لورته

ښه سپرلي دربانديي تیر شو ښکلي ګل وي د بهار
تورو خاورو کښي بندی شوي، څه وئي نه شي خپل مورته

خپلي خور سره دي جنګ کړو کله لوبي دي کولي
پاسیدي نه شي خپل رورته، قهریدلي نشي خورته

تا بي وخته رانه بوتلو، اے مرګیه څه دي وکړل
ویني څاڅي د زړګیونه، زهٔ حیران ځمه ستا زورته

کور دي خوشي خوشي پریښو، ما ته هرڅه ستا یادیږی
زهٔ ژړا به کړم ټول عمر زهٔ حیرانه یم ستا نُورته



ستا ادا راته یادیږی ستا خندا راته یادیږی
تا یو شور به وو جوړ کړې زهٔ خوشحاله به ستا شورته

د مرګ نه وے زما ګله، دې مرګی په تا ستم کړو
تا ئی نه کتل دې پلارته، تا ئی نه کتل دې مورته

ستا لوبي رایادیږی، اوازونه مي په غوږ شي
ستا خوبونه رایادیږی، اوس ستا روح ختلي پوُرته

ستا تلهٔ راته یادیږی، ستا راتلهٔ راته یادیږی
ستا ځیزونه ټول پراتهٔ دی، ته تري لاړلي تور ګورته

کورنیم ګړې په تا ښکاری، مزه نه کړی چي تهٔ نهٔ ئي
راپیدا به چرته نشي، بیا تهٔ نهٔ راځي دې مورته

مي زړګي دربسي ژاړی، ستا یادونه ډیر رادورمي
اے سحَر! مرګ ستم کړو زهٔ حیرانه یم دې جُورته



## «نفرت»

د انسان نه مي نفرت شه، د جانان نه مي نفرت شو
دا بد مخ ئي نيولي، د انسان نه مي نفرت شه

هيڅوک پاتي نه دی د دوستئ او د روزګار
بي ايمانه شوه دنيا، د بي ايمان نه مي نفرت شه

د خُلي مسلماني ده، زړۀ ئي مه ګوره تک تُور
کردار وته ئي ګوره، مسلمان نه مي نفرت شه

دهوکه او دړاکه ئي ده په ختمه کښي اخښلي
حيوان د دوؤ پښو شو، د حيوان نه مي نفرت شه

رښتيا تري چرته تلي او وفا څه شوه دنيا نه
دي ښکلي دنيا ګي نه، د آسمان مي نفرت شه

لوئي او تکبر به کړی زما لويه خالقه!
لوئي ربّه ستا شان دے، د هر شان نه مي نفرت شه



ما پريږدی چي تنها يمه زۀ ناست يم چرته غلي
څوک نه مني مي مينه، د خپل ځان نه مي نفرت شه

بيا هم پوهه نه شومه، زۀ مينه وفا وايم
په شعر څه حاجت شو، د دي ګردان نه مي نفرت شه

انسان سره مي مينه او وفا ده ډيره کړي
ستو مانه شومه خلقه! د احسان نه مي نفرت شه

پاتی هيڅوک نشو طارق پاتي شو يوازي
الله مي دي بس مل شی، دي جهان نه مي نفرت شه



## ﴿غزل﴾

زۀ به ګورمه ستا مینه ته به نۀ ئي
زۀ به ګورمه ستا خونه ته به نۀ ئي

ستا ښائسته ښائسته وجود به زما خوښ وو
تا به ګورم نازینینه ته به نۀ ئي

لاړې لاړې ته زما محل نه لاړې
اوس به څه کړمه شیرینه ته به نۀ ئي

ستا فراق او جدائي به ما تباه کړي
ورځ به وه په تا حسینه ته به نۀ ئي

زۀ دې ډیرې مینې ډیر آزار آزار کړم
څومره ښکلي او رنګینه ته به نۀ ئي

اوسنۍ مینه مې نه ده پخوانۍ ---ده
وی سحَر به مینه، مینه، تۀ به نۀ ئي



## غزل ۞حُسن۞

تا ته یاره اوګورم، که شا ته یاره اوګورم
ګیر چاپیره حسن دے، زۀ چا ته یاره اوګورم

یو هم رانه زړۀ وړی، او بل هم رانه زړۀ وړی
نورو ته زۀ اوګورم، که تا ته یاره اوګورم

هر حُسن خپل ځای باندې، جُداجُدا مزه لری
اشنا سره کړم مینه، که لیلې ته یاره اوګورم

یو حُسن څه نه دے، ګیر چاپیره حُسن، حُسن دے
توره شپه کښې ستورو، که سبا ته یاره اوګورم

د سپینو عجیبه حُسن، د تورو هم ښائسته ښکلا
حیرانه شمه حُسن ته، که تا ته یاره اوګورم

داغ زما په روح وشی، زۀ سحَر میثن شمه
شعر، شعر، شعر شم، سودا ته یاره اوګورم

## «غزل»

لا پروا یمه، ددې فانی دنیا نه
د هر څهٔ نه، هر سبا او ده رچانه

که زهٔ زر ځله پروا کړمه، فانی ده
زړهٔ مې تور دے زړهٔ مې موړ دې هر سبا نه

یو ساعت لره راغلی بیا به نهٔ یو
ته سبق واخله د خپل ښکلي بابا نه

چرې بیا هم راتلهٔ نشته درته وائیم
د آواز راځی ددې خاورې هوانه

زهٔ پوهیږمه، چې څه دی څهٔ به کیږی
ورکیږدهٔ دی، هیریدهٔ دی، دې فضا نه

زهٔ نادان نهٔ یم داوائمه خبر شه
زهٔ الله ته رسیدلي د رضا نه

زهٔ طارق کوري فقیر یمه، درویش یم
وپوهیږه مې د هر شعر صدا نه



## «نن دنیا کښې»

ښځه ښځه مه کیږه، د نر په پشاني اوسه
کلک لکه د کاڼړی شه، د غر پشاني اوسه

دا خلق به دې تیر کړی، که ته نرم شولے یاره
ته ښکلي ښکلي اوسه، د ګوهر په شاني اوسه

دا ټول دی جا سوسان، چې چرته څې ستا جاسوسی کا
تیار اوسه دې خلقو ته، بهادُر په شاني اوسه

یو کس د بل دښمن دے، زهٔ حیران یمه انسان ته
ځان بچ ساته دې خلقو نه، د سر شاني اوسه

کردار د خلقو څه دے، ورته او ګوره پخپله
یو خر دے، ځناور دے، د بشر په شاني اوسه

د بدو سره بد و کړه، د ښو سره ته ښهٔ کړه
ته ویښ وسه دنیا ته، د سحر په پشاني اوسه



## ❁ارمان ارمان❁

جـانـان جـانـان شـومـه زهٔ
ارمـان ارمـان شـومـه زهٔ

ښکلي که ډیر شو نو څهٔ
څیري ګریوان شومه زهٔ

له خلقو ځان رانغاړي
ډیر پښیمان شومه زهٔ

د ښکلو نه صبریږم
هسې ٔ نادان شومه زهٔ

ما څوک جانان نه کړلو
حیران حیران شومه زهٔ

چاته ورته تلي زهٔ نشم
هسې ٔ بیان شومه زهٔ

ښکلي په چا څه کوي
ارزان ارزان شومه زهٔ



تش په کتو څه کیږي
باران باران شومه زهٔ

ښکلي وي ځان له ښکلي
تاوان تاوان شومه زهٔ

سحر ایري ایري ئي کړمه
دیوان، دیوان شومه زهٔ



## ﴿غزل﴾

ښکليو له ورتلي نشم، هسئ ورته ګورمه
تول اوبه اوبه شمه هسئ زهٔ تويـ‍ـئ‍ـږمه

ښکلي څه پروانهٔ کړي، دوی ته د ځان څه پتّه
ځان ته دوی را ښکل کوی نه ورنږدې کيږمه

زړهٔ مي ورته ډير کيږي، شمه زهٔ لمبه لمبه
ښکلي مينه نه کوی، پرېږده چي سوزيږمه

ښکلي ما ليدلي دی، ډير مي محسوس کړی دی
ښکلي، ښکلي وی، ډير ترې زهٔ شرميږمه

اوسم په خيالی دنيا، ځکه زهٔ شاعر ئمه
زهٔ سحَر يمه ځکه زهٔ درديږمه





## ﴿غزل﴾

هر طرف ښکلا ښکلا، سترګي په کتو شومه
هر اړخ بهار بهار، ډوب زهٔ په ورمو شومه

کوم يو ګل ته وګورم، کوم يو ګل زهٔ بوئی کړمه
چا سره زهٔ مينه کړم، سترګي په ورتلو شومه

يو دبل نه ښکلي دي، زهٔ ورته حيرانه يم
سين د اباسين ئمه، زور کړم په چپو شومه

نور مي څه وس نه کيږي، حسرت کړمه ارمان کړمه
ځان له شم خفه شمه، بيا به ژړيدو شومه

رب وته حيرانه يم، ښکلي ئي پيدا کړله
شعر، شعر، شعر شم، سحَر زهٔ په نغمو شومه



## غزل

هیڅ مې ترې جوړنه کړلۀ ډېر عمر مې کار وکړو
دا دنیا مې ولیده، څکه مې انکار وکړو

ډېر عمر چاکر وومه، زړهٔ مې ستړې ستړې شو
بې سروسامان یمه، نن مې ښهٔ اقرار وکړو

وخت سره د وخت خبرې لاړې شي بیا نه راځي
هسې خوب و خیال دې وخت، ژوند راته تنګار وکړو

دا ئې راته ووې، غوږ کښې واوره ته
مه کوه دنیا ډېره، دائې خپل اظهار وکړو

دومره څه کوه، چې وخت دې تیر شي ښهٔ
بې وفا دنیا ده یار، زړهٔ مې دا غُبار وکړو

ما وې چې عالَم پرې خبردار کړمه، رښتیا څه دی
لاس چې مې قلم ته کړو، سحر پرې ښهٔ اشعار وکړو



## تنهائی څۀ وی

تنهائی عجیبه خوند کړی
تنهائی همیشه پند کړی

تنهائی یو ښکلې ساز دے
تنهائی انسانی راز دے

تنهائی نغمې نغمې دی
تنهائی مزې مزې دی

دا وجود مې په آرام وی
روح هم ښهٔ مدام وی

تنهائی عزت دے
انسانی ښکلې صفت دے

اسلامی ښکلې نکته ده
دا عجبه فلسفه ده

زۀ نغمې په تنهائی کړم
ښهٔ مزې په جدائی کړم

تنهائی الٰهیت دے
دا په اصل کښې وحدت دے

نه کم عقل نه نادان یم
ښه خبره په خپل ځان یم

دا یو راز د پاک الله دے
دا نعمت د پاک مولا دے

تنهائی به دے ګوهر کړی
تا به هر څه نه خبر کړی

زړهٔ چې پاک وی په خلوت دے
ګنی بیا په مصیبت دے

سخا پمن به دې جلوت کړی
بې قیمت به دې قدرت کړی

بیا به کشف ستا وجود کړی
د هر چا به دې ودود کړی

تنهائی د رب عطا ده
پرې زما ښکلې رضا ده

څوک به څه وکړی اے یاره!
انسان څومره دې بې کاره

تنهائی زما قوت دے
سحَر موندې پرې عظمت دے



## ﴿اصیل او کم اصل﴾

د کم عقلو نه کم عقل
د اصیلو نه اصیل

ما کم اصل ډیر لیدلې ---
نن مې ځکه دا وئیل

د پاکانو نه پاکان شی
دا دستور دې د ازل

سپې د سپیُو نه پیدا شی
د ګلو نو نه ښهٔ ګل

چا کښې سوز او مینه نشته
ستا په مرګ اخلی بدل

شریران خلق پیدا شو
ځکه هر اړخ غوبل

د ژوند راز نه نا خبره
دا نادان وی نهٔ عاقل

شریفان او اصیل څهٔ شو
ځکه ژوند، بدل بدل

خدائیګو ډیر کم اصیل وو ینم ---
زهٔ مجبور، په دې لیکل

خدائی سحرؔ ته بصیرت ورکړوله ځایه
چې څه وونیم، قلم مې شي جل بل





## ﴿نه مې مورشته نه مې پلار﴾

نه مې مور شته نه مې پلار
دا لیکمه په جار جار

په غمونو کښې اخته یم
په دردونو کښې حِصار

ښهٔ یوازې یم ژوندون ته
زهٔ ژړا کرم په زارزار

ځان غریب غریب زهٔ بُولم
څوک مې نشته غمګسار

ښکلې ښکلې ورځې شپې وې
هر طرف بهار بهار

زما زړهٔ ته یو سکون وو
هر یو دم قرار قرار

څهٔ بې تاجه بادشاهی وه
نهٔ به غم نهٔ به څهٔ کار

چې د کوره به بهر شوم
دوی به کړو زما نظار

چې مور لاړه هر څهٔ لاړهٔ
نه څوک خپل شته نه دلدار

ما ته څهٔ پته وه خدایه
چې به شمه په دوی خوار

چې پلار لاړهٔ هر څهٔ لاړهٔ
وویخ سوري مزیدار

هر څه شته خو زړهٔ خفه دے
زهٔ هر وخت بیمار بیمار

چې رایاد شي ښهٔ وختونه
اوښکې څې مې له نګار

ځان له کښېنم د دوی خیال کړم
بیا زهٔ ډوب شم په افکار

هر څوک شته، مور پلار مې نشته
هر احساس په جدائی فِګار فِګار



بیا به دوی چرې رانشي
کړم که زمکه تار په تار

په پردو خلقو څه کېږي
خپل مور پلار، ګلزار ګلزار

څوک د چا انتظار نه کړي
همیش دوی کړی انتظار

یو نمړی به څوک درنهٔ کړي
ټوله ورځ ګرځه په لار

چې ډوډې ئې تاله اېښې
خلقه داوی مور او پلار

چې خفه شم نو زهٔ لیکم
دا درانهٔ درانهٔ اشعار

سحّر درد لری په زړهٔ کښې
څه ښهٔ لیکي، شعرلیکی معنی دار



## ❁غزل❁

يارى كه آشنائى وى، تعويذونو باندې نه كيږى
كلي او خپلوى هم په زورونو باندې نه كيږى

مينه او وفا ددې، انسان نه سم اخلاص غواړى
ځان قربانوې به، په رسمونو باندې نه كيږى

مينه، محبت او ښكلي حُسن، له قدرته دے
دا د زړونو څيز دے، دولتونو باندې نه كيږى

كركې سره كركه وى، د مينې سره مينه وى
مينه عجب نُور دے، په رنګونو باندې نه كيږى

ته سمه يارى كړه بيا ته وګوره، چې څه كيږى
وركړه خپل وصال دے، په يادونو باندې نه كيږى

ستا چې بل څوک خوښ وى، خامخا به ئې خوښيږې ته
زړهٔ نه زړهٔ ته لاروى، په خيالونو باندې نه كيږى

غاړهٔ شه تهٔ يار ته، چې در غاړه شى
سحَر! ورنزدې شه، په شعرونو باندې نه كيږى





## ﴿جانانه!﴾

ارمان ارمان دې كړمه
جانان جانان دې كړمه

ډير پريشان دې كړمه
ستړې ستومان دې كړمه

خوږه جانانه زما...!
څيرې ګريوان دے كړمه

په يو نظر جانانه...!
حيران حيران دې كړمه

زهٔ خو نادانه نهٔ ووم
نادان نادان دې كړمه

په ښكلي حُسن باندې
ارزان ارزان دې كړمه

په ډیره مینه یاره
احسان احسان دي کړمه

هسئ دي واخستمه!
ارزان ارزان دي کړمه

زهٔ شعر، شعر شومه
دیوان ،دیوان دي کړمه

هر وختي تا یادوم
بیان ،بیان دي کړمه

په ځان دي پوهه نه کړم
ګریان، ګریان دي کړمه

یاره ستا ځنګه عشق
داستان ،داستان دي کړمه

سحر دي او رژیدو
خزان، خزان دي کړمه



## غزل ❁ زما دردونه❁

دي دنیا ذري ذري کړم---
هره خواه ذري ذري کړم---

د غم ډکه زندګی ده---
دي هوا ذري ذري کړم

هر یودم، کښي آفتونه---
دي فضا ذري ذري کړم

وخت راځی په بل بل رنګ کښي
هر سبا ذري ذري کړم

خوشحالی چرته کښي نشته
غمه تا ذري ذري کړم

دنیا چری نهٔ خپلیږی
دي سودا ذري ذري کړم

خلق بیا هم وریسي دی
عقله تا ذري ذري کړم

ددي خلقو څنگ خبري
زۀ رښتیا ذري ذري کړم

لا د یار مینه سپواده
دلربا ذري ذري کړم

مي وصال د جانان نشته
زۀ جفا ذري ذري کړم

د هر چا سره په جنگ یم
هم انا ذري ذري کړم

ډیر یادونه دي خپل راکړۀ
ستا وفا ذري ذري کړم



مور میره شوه کیله څۀ کړم
خپل بابا ذري ذري کړم

زۀ هر چاؤ ته نظر کړم
هم هر چا ذري ذري کړم

په آخره کښي به ورک شم---
انتها ذري ذري کړم

څومره ښکلي ته پیدا ئي
ستا ادا ذري ذري کړم

د سحّر، نازک، احساس دے
غم تنها ذري ذري کړم



# پيژندګلو

مصنف : ایم طارق سحرؔ

د پلار نوم: یوسف خان

قبیله: ختټ

زیږیدنه: ۱۵ـ ۹ـ۱۹٦٤ء

کسب: محکمه تعلیم، د ادب ښوونکې

تعلیم: ایم اے پښتو آنرز،اُردو ، اسلامی تعلیمات، بی ایډ، ایم ای
ایم فل، پاکستانی زبانیں

> د طارق سحرؔ شاعری د مجاز او حقیقت امتزاج دے
> درد مند او اهل دل انسان دے۔ قدرتی درد لری مینه ئی ایمان دے۔
>
> ډاکټر سلمیٰ شاهین بغداده مردان
> سابقه ډائریکټر پښتو اکیډمی پیښور

## چاپ کتابونه

(۱) ددشت لاروې

(۲) ژوند یو سراب

(۳) یادونه او دردونه

(۴) خالی لاسونه

(۵) خیالونه او فکرونه

(٦) دردونه احساسونه

(۷) زما دردونه





خلیق احمد



حفصه طارق



محمد شفیق